

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، ګوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




د پوهنې وزارت

# هیوادپالنه

## اووم ټولگی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ . ش.



## د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** هېوادپالنه

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د ټولنیزو علومو دیپارتمنت د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** اووم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af





## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او بښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي



# فهرست





## لومړی لوست

حمد عربي کلمه ده. د الله ﷻ ستایلو ته وايي. موږ د الله ﷻ ستاینه کوو، ځکه موږ یې مسلمانان پیدا کړي یو. عقل او فکر او روغ بدن یې راکړی. بې شمېره نعمتونو یې راباندې پېرزو کړي، پوهه یې راکړې چې ښه له بدو او خیر له شر سره توپیر کړو. له دې امله باید سهار او ماښام، شپه او ورځ، یعنې هر مهال آن د کار په بهیر کې الله ﷻ یاد، ستاینه او ذکر یې وکړو چې که وشي په دنیا او اخرت کې زموږ د ښېنې، خیر او فلاح لامل شي.

تاسو څه ډول د الله ﷻ شکر کاږئ او ستاینه یې کوئ؟

په دغه لوست کې د الله ﷻ د ستاینې او حمد په اړه یو منظوم کلام لولو او خوند ترې اخلو.

### د لوی خدای ﷻ ستاینه

| | |
|---|---|
| ای د هـــــر موجـود معبوده | جود د هـــــر چا ستا له جـــوده |
| ته رحمـــــــان یې ته رحیم یې | ته دانایی ته حکیـــــــــم یې |
| رنګارنګ ګلـــــــــونه واکړې | ته د ځمکې مخ زیبـــــا کـــړې |
| عقل تا ورکـــــــــړ و سر ته | لیده تا ورکــــــړه بصـــــر ته |
| مزه تا ورکـــــــړه دهـــــان ته | ویل تا ورکـــــــــړه زبان ته |
| تا و زړونو ته فکـــــر ورکــــړ | تا و خولې ته ذکــــــر ورکــــړ |



| | |
|---|---|
| چې په ژبه خــــــــــه ویل شي | په کــــاغــذ باندې کښــــــل شي |
| نه ویلي وي نه کښــــــــــــلي | تا په علـــــــــــــم وي موندلي |
| ستوري تا ورکړه آسمــــــــان ته | پوهه تا ورکـــــــــــــړه انسان ته |
| اوبه تا په اضطراب کــــــــــړې | خاورې تا لکـــه په خواب کړې |
| له اورو نه باران ته کـــــــــــړې | ګل پر مځکه زرغون ته کـــړې |
| چې غضب باندې څرګند کړې | پادشاهان په زنځير بند کـــــړې |

خوشحال خان ختټک

پورته حمد د پښتو ژبې ستر شاعر او لیکوال خوشحال ختټک ویلی دی. خوشحال خان ختټک د پښتو ژبې نامتو شاعر او لیکوال تېر شوی. خوشحال ختټک پر ۱۰۲۲هجري قمري کال [۱٦۱۳م] د پېښور په اکوړه کې زېږېدلی. د پلار نوم یې شهباز خان دی. خوشحال ختټک پښتو شعر او ادب ته زیات خدمتونه کړي او ارزښتمن کتابونه یې لیکلي دي. د هغه د کورنۍ غړي زیاتره د هغه په شعر او ادب کې د هغه لارویان وو. اشرف خان هجري، عبدالقادر ختټک، سکندر ختټک، حلیمې ختټکې، توتیا ختټکې، افضل خان ختټک او نورو د هغه پر پل پل ایښی او د پښتو ژبې او ادب مینه والو ته یې ارزښتمن تألیفات پرېښي دي.

## د نظم لنډ مفهوم

په دې ستاینه کې شاعر الله ﷻ ته د ستاینې په موخه لاسونه پورته کړي او د هغه ستاینه کوي، وایي، د نړۍ ټول مخلوقات، که پر وچه ژوند کوي که په اوبو او د سمندرونو په تل کې، ټول ستا حمد او ثنا وايي. د هرڅا جود او سخا ستا له جود او سخا څخه ده. ته پر خپلو مخلوقاتو بې کچې مهربان یې، ته په هر څه پوه او عالم یې. د ځمکې مخ دې په رنګارنګ ګلانو او شنو بوټو، مېوه لرونکو او بې مېوې ونو، غرونو او سيندونو ښايسته کړی دی. انسان ته تا عقل ورکړی او په ماغزو کې دې ورته پوهه ایښې. ستا د لورینې له امله سترګې ګوري. ژبه ستا نعمت دی، د دنیا د نعمتونو مزه پر ژبې معلومېږي او همدا ژبه ده چې وینا کوي، ستا شکر کاږي او ستايي دې. تا له کتاب او کاغذ څخه علم او پوهه نه ده زده کړې، ستا علم او پوهه ازلي ده. تا پر ستورو آسمان ښکلی کړی او انسان دې پر پوهه نازولی



او له نورو حیواناتو څخه دې په همدې فکر بېل کړی دی. بارانونه ستا رحمت دی او د ځمکې مخ پرې خړوبه او سمسورېږي. که د قهر او غضب اراده وکړې، نو په هماغه شېبه آن د ځمکې د مخ ستر پاچاهان د تخت له ګدۍ رانسکورېږي، څکه تا په قرآن کریم کې فرمايلي: ﴿وَتُعِزُّ مَن تَشَاء وَتُذِلُّ مَن تَشَاء﴾ {آل عمران: ۲۶} [ژباړه: چاته چې وغواړې عزت ورکوې او چاته چې وغواړې ذلت او خواري.]




زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي. هره ډله دې په دې اړه خبرې وکړي چې په څه ډول د خدای ﷻ ستاینه کوي. د خبرو پایله دې بیا د ډلو استازي نورو ته واوروي.




۱ – موږ د الله ﷻ د نعمتونو په وړاندې پر ژبه څه وايو او په عمل کې څه کوو؟
۲ - آیا لوی خدای ﷻ زموږ ستاینې ته اړتیا لري؟ موږ ولې د هغه ستاینه کوو؟
۳ – بسم الله الرحمن الرحیم څه معنا لري او موږ ولې د هر نېک کار په پیل کې هغه وايو؟




په خوکرښو کې په خورا خوږه او ښکلې ژبه د الله ﷻ ستاینه ولیکئ او د مضمون په راتلونکي ساعت کې یې نورو زده کوونکو ته د ښوونکي په لارښوونه واوروئ.






## د اسلام د ستر پیغمبر ﷺ اخلاق

اخلاق څه شی دی؟ له اسلام څخه د مخه د عربو او نورو ملتونو اخلاق څنګه وو؟ د اسلام ستر پیغمبرﷺ د خلکو اخلاقو ته څنګه بدلون ورکړ؟ پیغمبرﷺ د څرنګه اخلاقو خاوند و؟
په دغه لوست کې به د اسلام د پیغمبرﷺ ځینې اخلاقي صفتونه مطالعه کړو چې د هغه ﷺ له اخلاقو سره آشنا او د خپل ژوند د لارې مشال یې کړو.

### د اخلاقو تعریف

اخلاق په لغت کې خوی، خصلت او طبیعت ته ویل کېږي. په اصطلاح کې اخلاق په نفس کې له هغه ځای په ځای شوو صفتونو یا خویونو څخه عبارت دي چې انسان د هغه په واسطه ښه له بدو او ورې له ناوړو څخه بېلوي. که انسان د ښو اخلاقو خاوند وي، هغه ښه، د منلو وړ او ښایسته کارونه سرته رسوي. لکه رښتیا، نېکي، له یو بل سره مرسته او تعاون، زړه سوی، امانت ساتنه او نور، خوکه خدای مه کړه، څوک د بدو او ناوړو اخلاقو څښتن وي، له هغه څخه ناوړه او ناخوښه کارونه سرته رسېږي، لکه دروغ، ښکنځلې، غلا، خیانت، ظلم او داسې نور.



## په اسلام کې د اخلاقو مرتبه

د پیغمبر ﷺ له رسالت او د اسلام د سپېڅلي دین له راتګ څخه دمخه په عربو او د ځمکې د مخ په نورو ولسونو کې بد او ناوړه اخلاق ډېر دود وو. د اسلام ستر پیغمبر ﷺ د الله تعالی له خوا د بشریت د لارښوونې او ژغورلو لپاره راولېږل شو، قرآن کریم پرې نازل شو او دا دنده ورکړ شوه چې نېک اخلاق په خلکو کې بشپړ کړي، لکه چې فرمايي، [إنما بعثت لا تمم مكارم الاخلاقِ].

ژباړه: زه ددې لپاره رالېږل شوی یم چې مکارم او نېک اخلاق بشپړ کړم. په دې توګه هغه د ناوړو عادتونو او اخلاقو شرې ټوله کړه او عالي او ارزښتمن اخلاق يې تعميم او پلي کړل، بشریت يې له ګمراهيو او بدمرغيو څخه د نېکمرغيو او د دنيا او آخرت بښګڼو ته راوباله.

د پورته وینا پر بنسټ د الله جل جلاله پیغمبر د خپل بعثت او رسالت اصلي او بنسټيز هدف د نېکو اخلاقو بشپړول ګڼلي دي. له دې امله اخلاق د اسلام د سپېڅلي دين اساسي رکن ګڼل کېږي.

په اسلامي لارښوونو کې په عمومي توګه عقاید، احکام او اخلاق نغښتي دي. عقاید د انسانانو عقېده او ایمان سموي، احکام د انسان کړه وړه تنظیموي او اخلاق د انسان طبیعت او خویونه ښايسته کوي.

## د پیغمبر ﷺ د اخلاقو څو بېلګې



ام المؤمنين حضرت عایشې رضي الله عنها فرمايلي دي: د پیغمبر ﷺ اخلاق قرآن کريم و؛ يعنې د پیغمبر ﷺ ژوند د قرآنکريم د احکامو او عالي ارزښتونو عملي تطبيق و. هر مسلمان چې قرآنکريم تلاوت کړي او ځان پرې پوه کړي، د اسلام د ګران پیغمبر اخلاق په غوره توګه پېژني او عمل پرې کوي. د اسلام د ستر پیغمبر، حضرت محمد ﷺ د اخلاقو څو بېلګې يادوو:

- پیغمبر ﷺ تر ټولو انسانانو رښتينی انسان و. له دروغو څخه يې کرکه درلوده، ټولو ته به يې په رښتيا ویلو امر کاوه. فرمايلي يې دي، رښتيا ویل سړی ژغوري او دروغ سړی هلاکوي.
- نبی کريم ﷺ تر ټولو زيات حياناک انسان و، مسلمانانو ته يې په شرم او حيا امر کاوه او له بې‌حيايی څخه يې منعه کول. فرمايي، حيا د ايمان څانګه ده.
- پیغمبر ﷺ تر ټولو زيات امانت ساتونکی و، آن تردې چې په خپلو دښمنانو کې په (امين) مشهور و. مسلمانانو ته يې په امانت ساتلو ټينګار کاوه، له خيانت څخه يې منع کول، لکه چې فرمايلي يې دي، څوک چې امانت نه ساتي، هغه ايمان نه لري.



• پیغمبر ﷺ تر ټولو زیات سخاوت او کرم درلود، څه یې چې په واک کې وو، له نورو سره یې شریکول. فرمایلي یې دي، تر ټولو غوره خلک هغه څوک دي چې نورو ته یې ډېره ګټه رسېږي او مرسته ورسره کوي.




هر زده کوونکی دې د ښو او بدو اخلاقو د یوې یوې بېلګې نوم واخلي او د جاهلیت دورې د اخلاقو د بېلګو په اړه دې معلومات وړاندې کړي.




۱. اخلاق په لغت او اصطلاح کې تعریف کړئ؟
۲. د اسلام د ګران پیغمبر ﷺ له راتګ څخه دمخه د عربو او نړۍ د نورو ملتونو تر منځ د اخلاقو وضعیت څنګه و؟ بیان یې کړئ.
۳. د پیغمبر ﷺ په رسالت او اسلامي ښوونو کې د اخلاقو مرتبه په لنډه توګه تشریح کړئ.
٤. د ام المؤمنین حضرت عایشې رضي الله عنها دا وینا چې د پیغمبر ﷺ اخلاق قرآن و، څه مفهوم لري؟
٥. د اخلاقي صفتونو په لیکه کې د پیغمبر ﷺ د رښتیا ویلو، حیا، امانت او سخاوت په اړه په یادو شوو نبوي احادیثو استدلال وکړئ.




هر زده کوونکی دې د پیغمبر ﷺ د یو اخلاقي صفت او امانت ساتلو په اړه یوه لنډه مقاله ولیکي.





## د افغانستان تاریخي مخینه

زموږ گران هېواد په خپل څو زره کلن تاریخ کې د بشري ټولنې له تمدنونو سره جوخت د زړې آریانا تمدن او اسلامي پرتمین تمدن په خپله غېږه کې روزلی او پاللی دی. لرغوني افغانستان په خپل اوږد تاریخ کې ډېرې لوړې ژورې لیدلي؛ کله یې د سیاسي واکمنۍ لمنه پراخه شوې او کله هم د سیمې او نړۍ د واکمنو تر برید لاندې راغلی، د هغوی اغېز پرې زیات شوی او خاوره یې کوچنۍ شوې ده. په دې لوست کې به تر اسلام د مخه او وروسته له افغانستان سره په لنډ ډول آشنا شئ.

### افغانستان تر اسلام د مخه

د آریانا خاوره چې یوه برخه یې اوسنی افغانستان جوړوي او موږ پکې ژوند کوو، لویدیځ لورته یې ایران، ختیځ ته یې د سند سیند، شمال ته یې د آمو سیند او سوېل ته یې د عرب سمندرگی (بحیره) پروت و. زموږ په هېواد کې د اسلام تر راتگ او خپریدو دمخه یو شمېر کورنیو، لکه: پېشدادیانو، کیانیانو، اسپه، کوشانیانو او یفتلیانو حکومتونه کړي دي. له اسپه کورنۍ څخه تر کوشانیانو پورې هخامنشیانو او یونانیانو هم بریدونه کړي او تر خپلې واکمنۍ لاندې یې راوستی دی، خو زموږ د خلکو د مبارزو او سرښندنو له امله په شا تمبول شوي او هېواد خپله خپلواکي ترلاسه کړې ده. د کوشانیانو د کمزورۍ له امله یفتلیانو واک تر لاسه کړ. د یفتلیانو د دورې په پای



کې چې کوچنیو کوشانیانو سیمه ییز حکومتونه درلودل، زموږ هېواد د ختیځ، لوېدیځ او شمال له خوا د موریانو، ساسانیانو او ترکي قبیلو له خوا تر برید لاندې راغی. کورنیو واکمنانو پر خلکو ظلمونه او ناروا کوله. په پایله کې زموږ هېواد د بدمرغۍ او تورتم په کندې کې ولوېد، خلک له بې وزلۍ او لوږې سره مخامخ شول. په دغه مهال کې د اسلام د مبارک دین وړانګو زموږ د هېواد ځمکه او آسمان رڼا کړ او خلکو ته یې د نوي او نېکمرغه ژوندون زېرى ورکړ.

## افغانستان تر اسلام وروسته

په اوومې میلادي پېړۍ کې د اسلام مبارک دین زموږ هېواد ته راغی او د خلکو په ژوند کې یې بدلون رامنځ ته کړ؛ زموږ خلکو ته یې نوی اسلامي هویت ورکړ، د یووالي امر یې ورته وکړ؛ د خلکو پر مخ د علومو دروازې پرانستلې شوې. زموږ خلکو هم د علمي او فرهنګي خدمتونو له لارې د اسلام د خپرېدو په لاره او هم د اسلامي تمدن او فرهنګ په ودې او انکشاف کې هلې ځلې کړې او فعاله ونډه یې اخیستې ده.

## د خپلواکو اسلامي حکومتونو رامنځ ته کېدل

په افغانستان کې د خپلواکو اسلامي حکومتونو په رامنځ ته کېدو طاهریانو، صفاریانو، سامانیانو، غزنویانو، غوریانو او خوارزم شاهانو د هغه وخت له ناوړو شرایطو سره سره هر یو په خپل وار د اسلامي تمدن په بنسټ اېښودلو کې ارزښتمنې هلې ځلې کړې دي.
په دیارلسمه پېړۍ کې د چنګیز خان په لاس د خوارزم شاهانو د وروستي پاچا په له منځه وړلو مغول واک ته ورسېدل. زموږ هېواد بیا له ګډوډۍ، بدامنۍ او ځوړتیا سره مخامخ شو، تر هغه چې واک د ګورګاني تیمور اولادې، شاهرخ او سلطان حسین بایقرا ته ورسېد. دا مهال افغانستان د ترقۍ او پرمختګ په لورې ګام واخیست، فرهنګ او هنر وده وکړه. د سلطان حسین له مړینې وروسته بیا کورنۍ جګړې او بې اتفاقي رامنځ ته شوه، تر هغه چې میرویس نیکه د ولسي پاڅون له لارې له افغانستان څخه د صفویانو لاسونه لنډ کړل. میرویس نیکه، نه یوازې افغانستان د صفویانو له منګولو څخه وژغوره، بلکې اته کاله یې په خپلواک ډول د قوم د یوه مشر په توګه خپل هېواد اداره کړ. د میرویس نیکه له مړینې وروسته، هغه نظام چې ده یې بنسټ ایښی و، دوام ونه کړ او له ځوړتیا سره مخامخ شو. په هېواد کې ګډوډې رامنځ ته شوه، تر هغه چې په ۱۷٤۷ کال کې احمد شاه بابا د شېر سرخ په جرګه کې د چارو واګې ترلاسه کړل. دغه مهال هېواد خپل سیاسي دریځ تر لاسه کړ او د افغانستان





په نامه ونومول شو، پولې او سرحدونه یې د هغه په تدبیر بېرته ژوندي شول.
د احمد شاه بابا له مړینې وروسته، نه یوازې د هغه د ځایناستو تر منځ بې اتفاقي او شخړې رامنځ ته شوې، بلکې هېواد کمزوری شو، له هر لوري تر بریدونو لاندې راغی او یوه برخه یې له بدن څخه جلا شوه.

## د امیر امان الله خان د واکمنۍ پر مهال د هېواد د خپلواکۍ بېرته اخیستل

د امیر امان الله خان په وخت کې د هغه لومړنی کار له انګلیسانو څخه د افغانستان د خپلواکۍ اعلانول و. د خلکو د ملاتړ او سرښندنو په پایله کې یې په۱۹۱۹م - ۱۲۹۸ لمریز کال کې د افغانستان خپلواکي بېرته ترلاسه کړه. افغانان د خپل برخلیك خاوندان شول او د ترقۍ او پرمختګ په لور یې ګامونه کېښودل. د بهرنیو لاسوهنو له امله زموږ هېواد یو ځل بیا د نا امنۍ لوري ته لاړ چې په پای کې محمد ظاهر شاه واکمنۍ ته ورسید. د محمد ظاهر شاه په څلوېښت کلنه دوره کې، که څه هم د هېواد کرنې، صنعت، فرهنګي او اداري ډګرونو ته، لکه څنګه چې لازمه وه، زیاته پاملرنه ونشوه، خو بیا هم هېواد په سوله او امن کې ژوند کاوه.

## د ثور کودتا او د هغې ناوړې اغېزې

د ۱۳۵۷ کال د ثور د اوومې نېټې په کودتا زموږ په هېواد کې د پردي فرهنګ د نفوذ لپاره زمینه برابره شوه. زموږ خاورې ته د شوروي اتحاد سرې لښکرې راننوتې. زموږ خلکو په یو ډله ییز پاڅون د جهاد بیرغ پورته او د زیاتو ځاني او مالي زیانونو په ګاللو یې یرغلګر لښکر سرماتي او غاښ ماتي له هېواده وشړل، خو د کورنیو جګړو او بهرنیو لاسوهنو له امله زموږ هېواد بیا د پاڼ پر ژۍ ودرېد.
د تاریخ له پاڼو څخه دا لوست تر لاسه کولای شو، چې کله زموږ هېواد د پردیو تر تېرې لاندې راغلی او د هېواد خپلواکي یې له ګواښ سره مخامخ کړې، افغانانو د خپلمنځي توپیرونو له په پام کې نیولو پرته په یووالي او یو موټیتوب تېري کوونکو ته غاښ ماتوونکی ځواب ویلی او د عبرت درس یې ورکړی دی. تر ټولو ښه بېلګه یې له انګلیسانو سره د افغانانو درې جګړې او د شوروي اتحاد د ۱۳۵۸ کال د مرغومي د شپږمې نېټې د برید پر وړاندې زموږ د خلکو سر ښندنه او ځان تېرېدنه ده.
له دې امله موږ ته ښایي دغه ارزښناك میراث (هېواد) چې د نیکونو د وینې په بیه موږ ته په میراث راپاتې دی، نه یوازې په مېړانه یې ساتنه وکړو، بلکې په سوکالۍ، ودې او پرمختګ کې یې د زړه له کومې فعاله ونډه واخلو چې زموږ هېواد هم د نړۍ د پرمختللو او متمدنو هېوادونو په لیکه کې



ودرېږي او زموږ خلك سرلوړي، هوسا او نېكمرغه ژوند ولري.




زده کوونکي دې په پنځو ډلو ووېشل شي. هره ډله دې د افغانستان د تاریخي مخینې په اړه خپل نظر ووایي او د ډلو استازي دې د هغوی پایله ټولګیوالو ته وړاندې کړي.




١. په افغانستان کې د اسلام په خپرېدو سره کوم ستر بدلونونه رامنځ ته شول؟
٢. د هغو حکومتونو نومونه ووایئ چې د اسلام له راتګ وروسته رامنځ ته شوي دي.
٣. احمد شاه بابا په کومو شرایطو کې د هېواد مشري ترلاسه کړه؟




د ملي یووالي د ښېګڼو په اړه یو مطلب ولیکئ چې له پنځو کرښو لږ نه وي.





## ملي ترانه

د هېواد او هېوادوالو خدمت او د اړتیاوو د پوره کولو لپاره د ګران هېواد آبادي او بیارغاونه د هر افغان ملي او اسلامي دنده ده. دا کار په یوازې سر ناشونی دی، تر ټولو وړاندې ښایي خپل ملي یووالی جوړ او په ګډه د ګران هېواد آبادۍ او رغاونې ته ملي هوډ او یون پیاوړی کړو.
په دغه لوست کې مو د ملي ترانې تر سرلیک لاندې یو شعر ټاکلی چې زموږ د ملي غوښتنو او ارمانونو د پوره کولو لپاره یوه بېلګه شي.

### لوړ به دې نښان کړو

ګران افغانســـتانه تا به ښېرته مـوږ ودان کـــړو لـــوړ به دې نښان کـــړو
کور به یې د سـولې درنه ورک به دښمنان کړو لـــوړ به دې نښـــان کـــړو
زمـاګـــــرانه وطنه ته خو کور د عظـمتونو یې
مېنه د میړونـــــو یې
ځـــاله د اکبر او مسجدي د میـدانونو یـــې
کـــور د طـــوفانونو یې
بیـــابه دې وطنه افســـانه د دې جهان کـــړو لـــوړ به دې نښان کـــړو
ســتا هغه بچي دي چې نیولي یې ملکـونه دي
وړي یـې جنګونه دي

نوم د احمدشـــــاه دې لړزولي هېـــوادونه دي
پاته يې نقــــــلونه دي
نوی به تـــاريخ د پاني پت او اصفهان کـــړو         لوړ به دې نښــــان کـــــړو
ســـتا د گل سرخ لـــمن به ډکه له گلـــونو وي
جوش به د سيندونو وي
بيا به دې په غاړه کــې شرنگې د امـــيلونو وي
غږ به د ســــازونو وي
بيا به دې ړانده په غبرگـو سترگو غليمان کـــړو         لـــوړ به دې نښان کــــــړو
ستا پر پاکه خاوره چې راځي دلته سرونه خوري
زړه باندې زخمونه خوري
دلته د بازانو په ځـالی کې تيندکــونه خــــوري
وينې خوري دردونه خوري
ستا د ســــر خيرات به ډلې ډلې رقيبان کـــړو         لــــوړ به دې نښان کــــړو
ستا پر پاکــه خاوره چې گولی دې اورولې چــا
هغه دی دښمن زمــــا
ســتــــا په جنتونو کې مرگونه چې کـــرلي چـــا
خپل به نشي زما او ستا
څـو چې د سيالانويه ټولي کـې دې روان کړو         لــــوړ به دې نښان کــــړو
گـران افغانستانه  نور به نه يې د خوارانو کــــور
وران دغـــــريبانو کور
نور به دې څوک نه بولي د کـونډو يتيمانو کـور
رنگ د شهيدانو کـــور
جوړ به دې وطنه د عمرو خيري گرېوان کـــړو         لـــوړ به دې نښان کــــــړو
بيا به له آمـــــو تر ارغستانه شـنه دښتـونه وي
مست به يې گلونه وي
يو به لـــــه پنجشــيره تر هـــراته ولســــونه وي
يو به يې پـــوځونه وي
تاج به د لعـــلونو درته جوړ د بدخــشان کـــړو         لــــوړ به دې نښان کــــــړو



## عبدالباری جهانی

دا شعر د هېواد تکړه او وتلي شاعر، عبدالباري جهاني لیکلی. د جهاني له نامه سره ټول هېوادوال اشنا دي. په پورتني شعر کې جهاني د هېواد د ودانولو ښلابېل اړخونه یاد کړي دي. هغه وايي: «گرانه هېواده، تابه بېرته ودان کړو. د پخوا په څېر به دې بیا تېر شوي تمدنونه او د عظمت وختونه را ژوندي کړو. هېواد مو د اکبرخان او مسجدي خان په څېر نومیالي او توریالي درلودل، د لوی احمدشاه بابا په څېر مو ملي شخصیتونه او اتلان درلودل، چې د نورو هېوادونو د مظلومو مسلمانانو چیغې یې اورېدلې او مرستې ته یې وردانگل. تر هند او اصفهانه زموږ د اتلولیو کیسې کېدې. موږ د هماغو خلکو بچیان یو، باید د هغوی تاریخ ولولو او هغه د راژوندي کولو هڅې وکړو، خپل امنیت په خپله وساتو، سمبال ملي پوځ ولرو او گران هېواد ته د پخوا په شان د عزت او عظمت تاج ور په سر کړو.»




د هېواد د خدمت او ودانولو لپاره څه باید وکړو؟ په دې اړه دې زده کوونکي په دوو ډلو ووېشل شي او مهم عناصر دې یاد داشت کړي او استازي دې یې ټولگیوالو ته بیان کړي.




١. د گران افغانستان دښمنان څنگه وپېژنو؟
٢. د پورته شعر مفهوم په لنډو جملو کې بیان کړئ.
٣. د گران هېواد د کونډو او یتیمانو په اړه څه دنده لرو؟




زده کوونکي دې د لوی احمد شاه بابا، مسجدي خان او وزیر محمد اکبرخان د اتلولیو په اړه یوه مقاله ولیکي او دغه پوښتنې دې ځواب کړي چې د اتلانو د تاریخ او کړنو په اړه څه دندې لرو؟



پنځم لوست

## هېوادپالنه

هېواد زموږ ټاټوبی دی. په هېواد کې زېږېدلي يو. د هېواد په خاوره کې مو خاپوړې کړي دي. د هېواد له اوبو او خوړو څخه مو د بدن غړي، هډوکي، رګونه، غوښه او وينه جوړه شوې ده. هېواد موږ ته د مور حيثيت لري. د هغه په غېږ کې مو لوبې کړې، لوی او د ژوند پر ښو او بدو پوه شوي يو. د هغه درناوی، ساتنه او ودانول زموږ دنده اومسؤوليت دی. د هغه خدمت زموږ ملي وجيبه ده. د پرديو له ناوړو منګولو څخه د هغه ساتل او ژغورل زموږ د ايمان غوښتنه ده. دا کار په پوهه کېږي، په يووالي او اتحاد کېږي، له ځاني ګټو څخه د ملي ګټو په تر مخه کولو کېږي. په دې برخه کې د دې هېواد د صالح اولاد په توګه ښايي موږ هر راز سرښندنو ته تيار او چمتو واوسو.

### تاسې له خپل هېواد سره مينه په څه ډول څرګندولای شئ؟

هېواد هغې سيمې ته ويل کېږي چې انسان پکې زېږېدلی او ستر شوی وي. له زېږېدو څخه تر لويېدو او په پای کې تر مړينې پورې انسان د هېواد له بېلابېلو نعمتونو څخه تغذيه کېږي، خوند اخلي او د ژوند د پايښت لپاره په ځان کې غوښتل شوې اړتياوې پوره کوي. هېواد له مور سره پرتله شوی. د اسلام په سپېڅلي دين کې جنت د مور تر پښو لاندې بلل شوی. له هېواد سره مينه، هغې ته خدمت او خپلو هېوادوالو ته د خير ښېګېڼې رسول هم د دنيا او اخرت د نېکمرغۍ لامل او هم د الله جل جلاله د رضا د ترلاسه کولو له لارې جنت ته د ننوتلو وسيله کېږي.



## له هېواد سره مينه څه معنا لري؟

مينه يو خالي او مجرد نوم نه دی چې يوازې په اخيستلو يې د يو چا دنده سرته ورسېږي او مسؤوليت يې له غاړې ولوېږي. بلکې مينه د يو لړ معيارونو پوره کول دي. مينه ځان د يو لړ اصولو تابع کول دي. موږ وايو، له خدایﷻ سره مينه لرو، له دين سره مينه لرو، له مور سره مينه لرو، له پلار سره مينه لرو، له مشرانو سره مينه لرو، له خپلوانو سره مينه لرو، له الوتونکو سره مينه لرو، له ځاروېو سره مينه لرو او داسې نور. آيا دا هر څه همدلته پای ته رسېږي او که له دې ځايه پيلېږي؟ نه، له يو شي، چا، ځای يا بل هرشي سره مينه د يو پيل او آغاز نوم دی نه د پای او انجام. د بېلګې په توګه:

له اللهﷻ سره مينه لرل، پر هغه ايمان راوړل، د هغه عبادت او د مخلوق خدمت کول، د هغه امر او نهي منل، د هغه د رضا لپاره له خپلې رضا تېرېدل، د هغه د خوښۍ لپاره د هغه له دوستانو سره مينه او د هغه له دښمنانو سره دښمني کول دي... که دا چارې څوک سرته ورسوي، نو ويلای شي چې له اللهﷻ سره مينه لري. که نه، هسې تشې خبرې او لاپې دي.

همدا راز له مور او پلار سره مينه لرل د هغو دندو او وجايبو سرته رسول دي چې د مور او پلار د خوښۍ او رضا لامل کېږي. د بېلګې په توګه، د هغوی خبره منل، د هغوی خدمت کول، له هغوی سره نيکي او احسان کول، د هغو کارونو، نه کول چې د هغوی د خپګان لامل کېږي، د اړتيا پر مهال د هغوی خدمت کول او داسې نور. له خپلوانو، مشرانو، کشرانو، ګاونډيانو، الوتونکو او نورو سره مينه د همدغو کارونو د رسولو معنا لري. يعنې د داسې کارونو سرته رسول چې د هغوی د خوښۍ، سوکالۍ او نېکمرغۍ لامل کېږي او له هغو کارونو ځان ژغورل چې د هغوی د خپګان، نارضايتۍ او زيان لامل کېږي.

له هېواد سره د مينې ادعا هم د يو لړ دندو، مسؤوليتونو او معيارونو سرته رسول دي. له يوې خوا له هېواد سره مينه د [حب الوطن من الايمان] پر بنسټ د ايمان د ټينګښت غوښتنه ده او له بلې خوا د هغو مسؤوليتونو سرته رسول دي چې په يو هېواد کې د يو اصلي اوسېدونکي په توګه د يو چا پر غاړه پراته وي.

له هېواد سره مينه د يوه ځانګړي شخص يا فرد دنده نه ده، بلکې هر څوک، که لوی وي يا کوچنی، ځوان وي يا زوړ، بډای وي يا بې وزلي، حاکم وي يا رعيت، آمر وي يا مامور ... له هېواد سره د مينې احساس ځرګندولای شي.

له هر چا سره بايد دا فکر موجود وي چې څنګه او په کومه لاره کولای شي خپلو هېوادوالو ته په مستقيمه توګه خدمت وکړي چې هېواد ته په غير مستقيمه توګه خدمت بلل کېږي. کوچنيان او ماشومان او همدارنګه تنکي ځوانان او پېغلې نجونې د لوست او زده کړې په ترلاسه کولو او علم



حاصلولو کولای شي له هېواد سره خپله مینه توده وساتي. یو سوداګر خپلو ملي ګټو ته په پام، د هغو توکو پر واردولو دې سوچ وکړي چې د هېواد اقتصادي او ملي ګټې، د خلکو روغتیا او کورنی حالت یې غوښتنه کوي. که یو سوداګر د توکو او مالونو د واردولو پر مهال دغو ټکو ته فکر وکړي، نو کولای شي له هېواد سره د مینې د لرلو ادعا وکړي.
همدارنګه یو ښوونکی که په دې فکر د هېواد لوښو او زامنو ته لوست ورکړي، د هغوی په ښوونه او روزنه کې هلې ځلې وکړي چې سبا یې هېواد ودان او پر خپلو پښو ودرېږي، نو د هېوادپالنې ادعا کولای شي او د پوره درناوي وړ بلل کېږي. د هېواد نور بچیان چې که په هره دنده بوخت وي، که ډاکټران دي، که انجینیران دي، که پوځي افسران، سرتېري، څارنوالان، قاضیان، دیني عالمان، سیاستوال، قومي او ملي مشران، د خلکو استازي، لیکوالان، شاعران او فرهنګیان، کروندګر او نور کسبګر په دندو کې یوازې د الله ﷻ رضا او خلکو او هېواد ته یې خدمت یوازنی موخه وي، نو په زغرده ویلای شي چې هغوی له هېواد سره مینه لري او په دې توګه د درناوي وړ دي.
که د هېواد ټول خلک او اوسېدونکي په پورته روحیه او احساس کار وکړي او له لارې څخه د یوه اغزي له پورته کولو څخه نیولې، د چاپېریال د پاک ساتنې او هېواد تر سمسورتیا او سوکالۍ پورې هر کوچنی او لوی کار سرته ورسوي، نو لرې نه ده چې هېواد مو وده وکړي، ودان، اوسېدونکي یې نېکمرغه او د ښه او سرلوړي ژوندون خاوندان شي.
راځئ، د ماشومتوب او ځوانۍ له همدغه لومړي پیل څخه د هېوادپالنې لوست زده کړو، په ځانونو کې له هېواد سره د مینې روحیه او احساس، پر خپل هېواد د ویاړ او افتخار احساس او د شخصي ګټو پرځای د ملي ګټو د احترام او درناوي اصل وروزو او د یووالي او ورورګلوۍ په مینه لوی شو. له دې لارې به مو له هېواد سره مینه ښودلې وي او د هېواد پالنې افتخار به مو ترلاسه کړی وي. د یوې همداسې ورځې په هیله!




زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي. هره ډله دې په دې اړه خبرې وکړي چې د هغوی په فکر له هېواد سره مینه څه معنا لري او دوی په همدغه عمر کې هېواد ته څه کولای شي. بیا دې د ډلو استازي د خبرو پایله نورو ته وړاندې کړي.






۱ –شخصي گټې او ملي يا د ټولو گټې څه شی دی؟ د شخصي گټو پر ځای د ملي گټو ترمخه کول څه معنا لري؟

۲ – که د يو چا په فکر او سوچ کې تل دا خبره پرته وي چې چاته زيان ونه رسوي او د خلکو خدمت وکړي، هغه ښه کارونه سرته ورسوي چې د ده په وس کې وي. له دې څخه څه مفهوم اخيستل کېږي؟

۳ – د يو تنکي ځوان په توگه به نورو ځوانانو ته ستاسو سپارښتنه څه وي؟




زده کوونکي دې په خپلو کورونو کې د هېوادپالنې د لارو چارو په اړه يوه لنډه مقاله وليکي او په بله ورځ دې د همدې مضمون په ساعت کې نورو ته ولولي.





# استاد خلیل الله خلیلي
## (۱۲۸۶-۱۳٦٦ ل)

افغانستان د پوهانو، لیکوالو او شاعرانو زانگو ده. دې خاورې تل د تاریخ په اوږدو کې په خپلې غېږ کې مهم شخصیتونه روزلي دي چې په بېلابېلو لارو یې ټولنې او هېوادوالو ته په زړه پورې خدمتونه کړي دي. په دې لوست کې د هېواد یو نومیالی شخصیت او وتلی شاعر در پېژنو چې له ژوندلیك شخه یې د هېواد د ودانولو او پرمختگ لپاره گټه واخلو.

استاد خلیل الله خلیلي د میرزا محمدحسین خان مستوفی الممالك زوی او په قوم ساپی و. د خپل مهال یو وتلی او نومیالی شخص تېر شوی دی. په ۱۲۸٦ لمریز کال کې د کابل ښار د جهان آرا په باغ کې سترگې نړۍ ته غړولي دي. محمدحسین خان مستوفی الممالك د کابل شمال ته د کوهستان د سیمې له لویانو او دخپل وخت د مهمو شخصیتونو له ډلې شخه گڼل کېده.

خلیلي د ژوند له ستونزو سره مبارزه وکړه او د خپلې ذاتي وړتیا او لوړ همت له امله یې وکړای شول



د هنر او ادب له هر درمند شخه یوه گېډۍ راټوله کړي. دری ادبیات او د منطق، تفسیر او حدیث په څېر نور علوم یې د خپل مهال له وتلو استادانو او پوهانو څخه تر لاسه کړل.

د شپاړس کلنی پر مهال یې د میربچه کوټ په ښوونځي کې د ښوونکي په توگه کار پیل کړ. وروسته د خپلې وړتیا له مخې د مالیې وزارت د منشي او وروسته د بلخ ولایت د مستوفي په توگه پرکار وگومارل شو. څه موده یې د مزارشریف د حاکم په توگه هم کار وکړ. دیارلس کاله یې په صدارت کې دنده سرته ورسوله. څه موده د کابل پوهنتون د استاد او د پوهنتون د مرستیال دندې هم سرته ورسولې. په ۱۳۳۰ لمریز کال کې د افغانستان د مطبوعاتو د مستقل ریاست او په ۱۳۳۲ لمریز کال کې د محمدظاهر شاه په دربار کې د ستر سلاکار او د پارلمان د وکیل په توگه دنده اجرا کړې ده. د ۱۳۵۰ لمریز کال په لومړۍ لسیزه کې یې لومړی په سعودي عربستان او وروسته په عراق کې د لوی سفیر په توگه دنده سرته رسولې او په همدې موده کې د سوریې، بحرین، کویټ، اردن، قطر او ابوظبي په هېوادونو کې د نااستوگن سفیر دندې پر مخ وړې دي. استاد خلیلي د خپلو لوړو خدمتو په خاطر د افغانستان د پوهنې لومړۍ درجه نښان او همدارنگه د فرانسې د دولت له خوا د جنرال دوگول اکادمیک نښان تر لاسه کړی دی. نوموړی د آسیایي او افریقایي هېوادونو د نړیوالو لیکوالو غړی او د افغانستان د تاریخ د اکادمۍ افتخاري غړیتوب درلود.

تر ټولو مهمه خبره داوه چې استاد د ادب په نړۍ کې لوړ مقام تر لاسه کړ او ډېر ژر د افغانستان د نومیالیو شاعرانو په لیکه کې وشمېرل شو.

## د کډوالۍ پېر

د کمونیستانو په لاس د محمدداودخان د رژیم له رانسکورېدو وروسته، استاد د هېواد پرېښودو ته اړ شو. څه موده یې په امریکې کې تېره کړه، خو له هېواد سره د تودې مینې له امله یې هلته شپې ورځې سمې نه تېرېدې، د عمر په وروستۍ موده کې پاکستان ته ستون او له خپلو زړگونو هېوادوالو سره یوځای مېشت شو. د خپل هېواد افغانستان د آزادولو لپاره یې هلې ځلې گړندۍ کړې. دلته یې هم زیات آثار ولیکل او د نړیوالو غوږونو ته یې د پردیو له یرغل څخه د خلاصون لپاره د افغانانو غږونه ورسول.

په پای کې یې له اتیا کاله ژوند وروسته، د ۱۳۶۶ لمریز کال د غویي د میاشتې په ۱٤ کې له هېواد څخه په دردمن زړه د پاکستان د اسلام آباد په یوه روغتون کې له نړۍ څخه سترگې پټې کړې او په پېښور کې د افغان کډوالو په هدیره کې په ډېر درناوي خاورو ته وسپارل شو.



د اروانښاد خلیل الله خلیلي د جسد پاتې شونې له ۲۵ کلونو وروسته د ۱۳۹۰ لمریز کال د غبرګولي په میاشت کې افغانستان ته ولېږدول شول او د کابل پوهنتون په باغ کې د سید جمالالدین افغان ترڅنګ په رسمي مراسمو خاورو ته وسپارل شول. اروا دې ښاده وي.




زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي. هره ډله دې په خپلو کې د اروانښاد خلیل الله خلیلي په اړه خبرې وکړي او د خبرو پایله دې د خپلو استازو په واسطه نورو ټولګیوالو ته بیان کړي.




۱ - استاد خلیل الله په کوم کال کې او چېرته زېږېدلی دی؟
۲ - د استاد خلیلي د مهمو کارونو نومونه واخلئ.
۳ - د هېوادپالنې په اړه د استاد خلیلي د احساساتو په اړه خپل معلومات نورو ته بیان کړئ.




زده کوونکي دې د استاد خلیل الله خلیلي ژوندلیک ولیکي او په ترڅ کې دې له نورو درسي کتابونو څخه د هېوادپالنې په اړه د هغه یو څو بیتونه راوړي.





## د وطن حق

د وطن حق شعر د پښتو د خوږ ژبي ولسي شاعر، ارواښاد ملنگ جان دی. د ملنگ جان اصلي نوم محمد امين و. وروسته يې په ملنگ جان شهرت وموند. ملنگ جان پر هېواد مين شاعر و. نوموړی په ۱۲۹۳ لمريزکال کې د ننگرهار ولايت د بهسودو په چمياركلي كې زېږېدلی دی. پلار يې ملك عبدالشكور نومېد چې په دريو كلنۍ كې تری يتيم پاتې شو. په پنځلس كلنۍ كې يې د شعر ژبه وياندہ شوه او د ملنگ جان په نامه يې په خوږو نغمو پيل وکړ. په شل كلنۍ كې يې لومړۍ ترانه د اتحاد مشرقي (ننگرهار) په ورځپاڼه کې خپره شوه. دا هغه مهال و چې شعرونه او نغمې يې د سندرغاړو خولو ته رسېدلې وې او د نامه خاوند شوی و. په ۱۳۲٤ کال کې په كابل راديو كې د پښتو موسيقۍ د منتظم په توگه وټاکل شو. د ننگرهار ډېری ولسي سندرغاړي د ملنگ جان شعرونه وايي، ځكه له يوې خوا يې ظالم غندلی او له بلې خوا يې له هېواد او هېوادپالنې سره ډېره مينه ښودلې ده. داسې کوم پښتون سندرغاړی به پيدا نشي چې د ملنگ جان شعرونه يې ياد نه وي. د ملنگ جان د شعرونو ټولگه د «خوږې نغمې» په نامه چاپ شوې دي.

له بده مرغه دغه خوږ ژبی ولسي شاعر د ۱۳۳٦ کال د لړم په لسمه نېټه له كابل څخه جلال آباد ته د تگ په لاره کې د موټر د چپه كېدو له امله د مرگ كومې ته وغورځېد. جنازه يې په پلرنۍ هديره کې خاورو ته وسپارل شوه.

د ملنگ جان له دې خوږې ترانې څخه له هېواد سره د هغه عشق او مينه پوره ښکارېږي:



# دا زموږ زیبا وطن

دا زموږ زیبا وطن — دا زموږ لیلا وطن
دا وطن مو ځان دی
دا افغانستان دی

دا د مینې کور زموږ — دا د پلرو گور زموږ
نه ورکوو چا لره — دا د سترگو تور زموږ
نه دی د بل چا وطن — دا دی د شېرشاه وطن
کور د خوشحال خان دی
دا افغانستان دی

دا وطن دی ځان زموږ — دا وطن ایمان زموږ
وایي په خاپوړو کې — داسې ماشومان زموږ
دا مو د بابا وطن — دا مو د دادا وطن
په موږ باندې ډېر گران دی
دا افغانستان دی

ځار يې له سیندونو شم — ځار يې له ډاگونو شم
ځار يې له خوړونو شم — ځاريې له دې غرونو شم
دا زموږ آشنا وطن — درد له مو شفا وطن
زړگی مې پرې روښان دی
دا افغانستان دی

دا وطن زیارت زموږ — دا وطن نعمت زموږ
دا وطن په دې دنیا — دی لکه جنت زموږ
دا وطن صفا وطن — زړه د ایشیا وطن
ژوندون د ملنگ جان دی
دا افغانستان دی




زده کوونکي دې په ډلو کې په دې اړه خبرې وکړي چې پورته ترانه ترکومه بریده د هېوادپالنې روحیه راژوندی کوي؟ وروسته دې د ډلو استازي د خبرو اترو پایله نورو زده کوونکو ته ووایي.




۱ –د ملنګ جان د پورته ترانې مفهوم څه شی دی؟
۲ - د ملنګ جان د ژوند او شعرونو په اړه څه فکر کوئ؟
۳ - ولې موږ ته خپل هېوادګران دی او ستاینه یې کوو؟




زده کوونکي دې په کورونو کې د ملنګ جان پورته ترانه په روان نثر ولیکي او ټولګي ته دې راوړي.



# ملي ګتې

ملي ګټې څه شی دي ؟ ملي ګټې د ملتونو په پیاوړتیا او پایښت کې څه رول لري؟ ولې ملتونه د خپلو ملي ګټو د لاسته راوړلو لپاره ډېر ټینګار کوي؟ د ملي ګټو له لاسه ورکول د یو ملت لپاره څه زیانونه لري؟
په دې لوست کې پورته پوښتنو ته ځوابونه ورکول کېږي.

## ملي ګټې څه شی دی؟

ملي ګټې هغو ګټو ته ویل کېږي چې د هېواد د ټولو اوسېدونکو له ژوند، ګټو او وياړ سره مستقيمې اړيکې لري. اړوند دولتونه يې د خپلو ولسونو په استازيتوب په ودې او ساتنې کې هلې ځلې کوي او د کور دننه او بهر يې د تحقق لپاره ټینګار کوي.

## د ملي ګټو اړخونه

ملي ګټې له دین، معنوي ارزښتونو، استقلال، ځمکنۍ بشپړتیا، امنیت، اقتصادي پرمختګ، ملي وياړ، تاريخ، فرهنګ او داسې نورو څخه عبارت دي او په لنډ ډول لاندې بيانېږي:



### دين او معنوي ارزښتونه

د ملي ګټو په ليکه کې يو هم دين او معنوي ارزښتونه دی. ديني او معنوي ارزښتونه د مسلمانانو د ژوندانه د ټولو اړخونو اساس او بنسټ شمېرل کېږي. د ملي ګټو په ليکه کې ددغو ارزښتونو ساتل د دولت او هېوادوالو ګډ مسؤوليت دی. په لومړي ګام کې د يوه مسلمان ملت په توګه زموږ د برياليتوب او پياوړتيا راز زموږ د ديني او معنوي ارزښتونو په ساتلو کې پروت دی؛ ځکه دين او معنويت يو داسې اساسي بنسټ دی چې زموږ پلرونو او نيکونو د تاريخ په اوږدو کې د خپلو سرونو په بيه ساتلی او موږ ته يې د ميراث په توګه پرېښی دی. ديني ارزښتونو ته د درناوي له لارې يې پر ستونزو برې تر لاسه کړی او د نورو ولسونو تر منځ يې د يوه ژوندي او تلپاتې ولس په توګه خپل دريځ ساتلی دی.

### ځمکنۍ بشپړتيا

ځمکنۍ بشپړتيا؛ د ټاکلو او پېژندل شوو پولو په محدوده کې د يوې ټوټې خاورې او سيمې درلودل دي. دا خاوره يا سيمه د هېواد په نامه پېژندل کېږي او د نړيوالو اصولو له مخې د هغه خاورې د اوسېدونکو شتمني بلل کېږي. بېلابېل ولسونه، قومونه، قبيلې يو له بل سره په ورورولۍ او ملګرتيا يوځای ګډ ژوند کوي او يو د بل لاس او پښې بلل کېږي. له دې امله لازمه ده چې دا قومونه او ولسونه د هېواد پالنې په احساس لاسونه سره ورکړي او خپلې ټولې غوښتنې د خپل هېواد د ځمکنۍ بشپړتيا تر سيورې لاندې ولټوي. د خپلې خاورې او هېواد د ساتلو او پرمختګ لپاره په ګډه کار وکړي او پرې نږدي چې دا ګټې له ګواښ سره مخامخ شي. د اړوند دولت او ولس ټوله نېکمرغي او سوکالي په همدغو ملي ګټو کې نغښتې ده.

### امنيت

په يو هېواد کې د ملي ګټو بل اړخ د امنيت تأمين دی. له ډار او ګواښ پرته ژوند ته امنيت ويل کېږي. امنيت په جګړو، تاوتريخوالي، اخ و ډب او د يوه بل پر وړاندې د زغم د نه موجوديت له امله ګډوډېږي. له امله يې د خلکو ژوند کاواکه او له ګواښ سره مخامخ کېږي. د ژوندانه د ډېرو لومړنيو اړتياوو د ترلاسه کولو پر وړاندې خنډونه رامنځ ته کېږي. ددې تر څنګ ښايي د يو هېواد اوسېدونکي له ذهني پلوه هم د امنيت او خونديتوب احساس وکړي او له داسې کوم ګواښ سره مخامخ نشي چې د ژوند عادي بهير يې ګډوډ شي.

دا د حکومت دنده ده چې په بېلابېلو سياسي، ټولنيزو او اقتصادي ډګرونو کې د خلکو امنيت خوندي کړي چې هېواد وال وکړای شي په سوله او امنيت کې ژوند وکړي او خپل هېواد ودان کړي.



خدای جل جلاله په قرآن کریم کې پر قریشو غبرګ کړی چې له ډار څخه یې خوندي کړي او له لوږې یې ژغورلي دي. دا دواړه لوی نعمتونه دي چې ښايي درناوی یې وشي.

## اقتصادي سوکالي

له شك پرته د اقتصادي او معیشتي سوکالۍ تأمین د ټولو ملتونو اساسي او مهمه غوښتنه او د هغوی د ملي ګټو برخه ده. کمزوري، لوږه او بېکاري د ملي ګټو له ربښتینولۍ سره زیات واټن لري.
اقتصادي سوکالۍ ته د رسېدو يوه لاره د کورنيو طبيعي کانونو او شتمنيو را ايستل او د بهرنيو پانګو اچولو جذب دی.
الحمد لله، زموږ هېواد د طبيعي شتمنيو او بشري استعدادونو له مخې بډای دی. دولت ته ښايي د ملت په ملګرتیا او مرسته له دغه خدايي پانګې څخه ګټه واخلي، خلك له بې وزلۍ او احتیاج څخه وژغورل شي چې ځانونو ته یو سوکاله ژوند جوړ کړي.

## پیاوړتیا

د دولتونو د پیاوړتیا ځواك د هغه هېواد په طبیعي موقعیت او د خلکو په هلو ځلو پورې تړلی دی. لکه د سیاسي جغرافیاوي موقعیت (جیوپولیتیك) له پلوه په یوه او مناسبه سیمه کې د یو هېواد واقع کېدل او یا د طبيعي زېرمو، لکه نفت، ګاز او نورو کانونو شتون او استخراج، خو اکتسابي ځواك او نفوذ د یو هېواد په علمي، اقتصادي، تخنیکي، پوځي، نفوسو او نورو په پرمختګ پورې تړلی دی. هغو هېوادونو ته غښتلې هېوادونه ویل کېږي چې په آسانه ډول خپلې موخې لاس ته راوړي او په سیمه ییزو او نړیوالو مسایلو کې نفوذ او لوی لاس ولري.

## خپلواکي يا استقلال

د خپلواکۍ درلودل د ملي ګټو مهمه برخه بلله کېږي. خپلواکي؛ یعنې په ټاکنو او پرېکړو کې خپله خوښه او لوی لاس درلودل. خپلواك هېواد هغه هېواد ته ویل کېږي چې د ژوندانه په لارو چارو او د حکومتي او سیاسي نظام په ټاکلو کې له بشپړې آزادۍ څخه برخمن او د چا تر لاس لاندې نه وي. هېڅوك نشي کولای د زور له لارې پر چا یو نظام وتپي. خپلواکي په حقیقت کې د نورو ټولو نومول شوو ګټو پایله ده.






څو تنه زده کوونکي دې د ملي ګټو په اړه لنډې خبرې وکړي. هڅه دې وکړي چې په دې اړه خپل بشپړ معلومات بیان کړي.




۱. ملی ګټې راوپېژنئ.
۲. د ملي ګټو ډولونه په لنډ ډول بیان کړئ.
۳. روښانه کړئ چې ولې دین او معنویت د ملي ګټو په لیکه کې شمېرل کېږي؟
٤. دولت او ملت باید د خپل هېواد د ځمکنۍ بشپړتیا د ساتلو لپاره څه وکړي؟
٥. د امنیت په اړه خپل معلومات بیان کړئ او په اقتصادي سمسورتیا کې د هغه رول څه ډول دی؟
٦. اقتصادي سوکالي څنګه د ملي ګټو یوه برخه جوړوي؟
۷. د دولتونو د پیاوړتیا ځواک پر څه شي ولاړ دی؟ بیان یې کړئ.
۸. خپلواکي څه ته وایي؟




د ملي ګټو په اړه یوه مقاله ولیکئ چې تر لسو کرښو لږه نه وي.





## ملي اتلان

افغاني خاوره د اتلانو زانگو ده. زموږ آزادي، خپلواکي، وياړنې او ملي حيثيت د هغو نارينه وو او مېرمنو د هاند او هڅو پايله ده چې په ستونزمنو او سختو شرايطو کې يې خپلې سينې سپر کړې او هېواد يې خوندي او ودان کړی دی. هغوی ددې خاورې اصلي بچيان او د تاريخ ملي اتلان گڼل کېږي. په دې لوست کې له دغو يو شمېر اتلانو سره آشنا کېږو.

هر ولس او خاوره ځانته اتلان لري چې د هغه ولسٍ خلك پرې وياړي. د هغوی نومونه او ياد تل په زړونو کې ساتي او درناوی يې کوي. اتلان معمولاً هغو اشخاصو ته ويل کېږي چې په ډېرو ناوړو او سختو شرايطو کې ډگر ته راوځي، خپل ځانونه د ستونزو د سمندر څپو ته اچوي او د خپل ولس ماته او توپان وهلې بېړی د برې ساحل ته رسوي.
زموږ هېواد افغانستان د شپاړسمې پېړۍ په لومړۍ نيمايي کې د هرات د تيموريانو له سقوط وروسته د دريو بهرنيو پوځونو؛ ايراني صفويانو، هندي بابريانو او د ماوراءالنهر د شيبانيانو تر بريدونو لاندې راغی. د نومړو هېوادونو لاسوهنو څه ناڅه دوې نيمې پېړۍ دوام وکړ، تر هغه چې ميرويس نيکه په ۱۷۰۹ م کال کې وکړای شول د تبرې کوونکو پر وړاندې بريالی او په کندهار

کې خپلواک حکومت جوړ کړي، خو عمر یې ورسره ملګرتیا ونه کړه او تر ډېرشو کلونو ډېر یې دوام ونه کړ.

د هوتکیانو د حکومت له پای ته رسېدو وروسته افغانستان یو ځل بیا د نادر افشار د ځواکونو تر بریدونو لاندې راغی. د نادر افشار تر وژل کېدو وروسته، احمد شاه بابا په ۱۷٤۷م کال کې افغانستان بېرته را ژوندی او یوه پیاوړې امپراتوري یې جوړه کړه، چې له آمو دریاب څخه د عرب تر سمندرګي او له سند څخه تر مشهده پورې یې پراخوالی درلود. دغه امپراتوري د احمد شاه بابا د اولادې تر منځ د توپیرونو او جنګ جګړو له امله کمزورې او په ۱۸۳۹ کال کې د انګلیسانو تر برید لاندې راغله.

افغانان د هېوادپالنې د احساساتو او د ازادۍ د روحیې پر بنسټ د خپلو اتلو مشرانو شاوخوا ته راټول شول، د انګلیسانو شړل یې خپله دیني او ملي دنده وبلله. د سردار وزیر محمد اکبرخان، میرمسجدي خان کوهدامني، نایب امین الله خان لوګري، عبدالله خان اڅکزي او نورو اتلانو تر مشرۍ لاندې راټول او د انګلیسي تېري کوونکو په وړاندې یې د جهاد بیرغ  هسک کړ. په دې ډول د افغاني مجاهدینو او جنګیالیو په لاس د انګلیسانو لومړی تېری د مکناټن، برنیس او یو زیات شمېر افسرانو او سرتېرو په وژلو پای ته ورسېد او د هغوی نړیوال دریځ زیانمن شو.

د ۱۸۷۸ م کال د نومبر په میاشت کې انګلیسانو پر افغانستان بیا تېری وکړ او د ګندمک تړون یې پر امیر محمد یعقوب خان تحمیل کړ. د انګلیسانو واکمن سفیر او استازی، کیوناری د کابل بالاحصار ته راغی. افغانانو، چې د هېواد په اداره کې یې د پردیو لاسوهنه ولیده، د انګلیسانو پر وړاندې یې بیا په پاڅون لاس پورې کړ. کیوناری او د هغه عسکر یې په بالاحصار کې ووژل. افغانان د قومي مشرانو او مجاهدینو، لکه محمد جان خان وردګ، ملادین محمد مشک عالم، صاحب خان تره کي، سردار محمدایوب خان، محمد عثمان خان ساپي تګابی، میر بچه خان کوهدامني، غلام حیدر خان څرخي، ملالۍ او غازي ادې تر مشرۍ لاندې یو موټی شول او د هېواد په بېلابېلو سیمو کې یې د انګلیسي پوځونو پر خلاف بریدونه پیل کړل. د کندهار په جګړه کې د انګلیسانو څه د پاسه دولس زره عسکر ووژل شول او له افغانستان څخه یې وتلو ته اړ ایستل.

د یادولو وړ ده چې د انګلیس پر وړاندې په جهاد او مبارزه کې د نارینه وو تر څنګ مېرمنو هم فعاله ونډه درلودلې ده. یوازې پر افغانستان د انګلیسانو په دویمې جګړې کې د کابل د آسمایي غره په لمنو کې اته سوه پنځوس تنو مېرمنو ګډون کړی وو چې درې اتیا تنو یې د شهادت جامونه وڅښل. په کابل کې د غازي ادې او د میوند په جګړه کې د ملالۍ تلپاتې نومونه د تاریخ په پاڼو کې په زرینو کرښو لیکل شوي دي.



## د شوروي پر خلاف په جهاد کې د افغانستان د ملي اتلانو ویاړنه

په ۱۳۵۸ م کال کې پخواني شوروي اتحاد زموږ پر هېواد برید وکړ. شوروي اتحاد هغه مهال د نړۍ له سترو هېوادونو څخه شمېرل کېده. د افغانستان مسلمانو خلکو په تش لاس له ایمان څخه په ډک زړه پر خدای جل جلاله باندې د توکل له لارې د شوروي اتحاد په سرو لښکرو چې د نړۍ پیاوړې وسله وال پوځونه بلل کېدل، پاڅون وکړ. له لسو کلونو وسله وال جهاد وروسته یې شورویان له خپل هېواد څخه مات اوګوډ وایستل. افغاني مجاهدینو په دې وخت کې د باطل پر خلاف په حق مبارزه کې د بشري تاریخ یوه ستره ویاړنه ثبت کړه.




زده کوونکی دې په څو ډولو وېشل شي . یوه ډله دې پر افغانستان باندې د لاسوهنو او تېریو د لاملونو په اړه اوبله ډله دې د تېریو په له منځه وړلو کې د ملي اتلانو د رول په هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړي او پایله دې د استازو له خوا په ټولګي کې ووایي.




۱. ملي اتلان څنګه کولای شي د پردیو د بریدونو او تېریو په شنډولو کې خپل رول ولوبوي؟
۲. د افغان او انګلیس د لومړۍ جګړې د ملي اتلانو او مبارزینو نومونه ووایئ.
۳. د افغان او انګلیس د دویمې جګړې افغان ملي اتلان څوک وو؟ نومونه یې واخلئ.
٤. غازي ادې او ملاله د کومې جګړې اتلانې دي؟
۵. د شورویانو پر وړاندې د افغانانو د جهاد د بریالیتوب راز په څه شي کې نغښتی و؟




زده کوونکي دې د کورنۍ د غړیو، استادانو، فرهنګي شخصیتونو او تر لاس لاندې منابعو په مرسته د ملي اتلانو په هکله یو مطلب ولیکي او په ټولګي کې دې ووایي.





## شهید محمد موسی شفیق

په مخکنیو لوستونو کې مو د هېواد د سترو پوهانو، لیکوالو، شاعرانو او ملي مشرانو په اړه لږ او ډېر معلومات ترلاسه کړل. دلته د هېواد یو وتلی شخصیت در پېژنو. دغه نومیالی شخصیت، شهید محمد موسی شفیق دی. ګران هېواد، افغانستان ته به د اروښاد شفیق ارزښتناک خدمتونه د تل لپاره د ټولو په زړونو کې پراته وي.

شهید محمد موسی شفیق د مولوي محمد ابراهیم کاموي زوی په ۱۳۰۸ هـ. ش کال د کابل په ښار کې نړۍ ته سترګې وغړولې. لومړنۍ زده کړې یې د ننګرهار ولایت د کامې په ولسوالۍ کې په خپل پلرني ټاټوبي او په کابل ښار کې سرته ورسولې. ثانوي زده کړې یې د ننګرهار ولایت د نجم المدارس په مدرسه او د کابل په عربي دارالعلوم کې بشپړې کړې.

په شاهي دار التحریر کې له یو څه وخت ماموریت وروسته د لوړو زده کړو لپاره مصر ته واستول شو او هلته یې د الازهر په اسلامي پوهنتون کې د لیسانس او ماسترۍ تر درجې پورې زده کړې وکړې. د نورو لوړو زده کړو لپاره د امریکا متحده ایالاتو ته لاړ او له هغه ځای څخه یې د پرتله ییزو (مقایسوي) حقوقو په څانګه کې د ماسترۍ دویم برې لیک تر لاسه کړ.



محمد موسی شفیق د زده کړو له سرته رسولو وروسته هېواد ته راستون او د عدليې وزارت د تقنین په څانګه کې یې کار پیل کړ. لږه موده وروسته د خپلې وړتیاله مخې د همدغه وزارت مرستیال وګومارل شو.

د عدليې په وزارت کې د مختلفو قوانینو او اصولنامو تسوید او تدوین د شهید محمد موسی شفیق له ارزښتناکو کارونو څخه شمېرل کېږي. د شهید محمد موسی شفیق له دندو څخه یوه هم د مصر په عربي جمهوریت کې د سفارت دنده وه. د افغانستان او مصر د اړیکو لانږدې والی د شهید محمد موسی شفیق له بریاوو څخه شمېرل کېږي.

شفیق د خپلې وړتیا او جدیت له مخې د افغانستان د بهرنیو چارو د وزیر په توګه و ټاکل شو. ډېر وخت لا نه و تېر شوی چې په ۱۳۵۰ لمریز کال کې د افغانستان د صدراعظم په توګه غوره او وټاکل شو.

شفیق ځوان، هڅاند او زیارکښ صدر اعظم و. هغه هیله درلوده چې ګران هېواد، افغانستان، یې ګړندی پرمختګ وکړي.

شهید محمد موسی شفیق د ۱۳۵۱ لمریز کال له وچکالۍ ځپلو خلکو سره د مرستې لپاره د حل یوه معقوله لاره و سنجوله او د نړیوال بانک مرستې یې تر لاسه کړې.

د شهید محمد موسی شفیق د صدارت د وخت له کارونو څخه، د صنعتي پرمختیایي بانک او داسې نورو اقتصادي پروژو پلې کول یادولای شو.

شهید محمد موسی شفیق، عالم، لیکوال، ادیب، حقوقپوه، ډیپلومات او ښه سیاستمدار و چې پر ملي ژبو، پښتو او دري سربېره یې په عربي، انګلیسي او فرانسوي ژبو پوره برلاسی درلود.

د شهید محمد موسی شفیق له نورو غوره کارونو څخه د افغانستان له رادیو څخه د لمانځه په وخت د آذان خپرول او د حکومتي ادارو له خوا د دیني عالمانو او نورو مسلمانو دعوت کوونکو د ځورولو مخنیوی و چې د مسلمانو هېوادوالو له خوا یې تود هرکلی وشو.

شهید محمد موسی شفیق د ۱۳۵۲ لمریز کال د سرطان په ۲۶ نېټه د پوځي کودتا په ترځ کې له کار څخه ګوښه شو او د ۱۳۵۷ لمریز کال د ثور د اوومې نېټې له کمونیستي خونړۍ کودتا وروسته زنداني او د کمونیستي رژیم د جلادانو له خوا په مظلومانه توګه په شهادت ورسېد.

موږ، د افغانستان مسلمان ولس، به هېڅکله د خپل هېواد د ملي شخصیتونو او ملي مشرانو خدمتونه هېر نه کړو، د هغوی د درناوي وړ کارونه به د لارې مشال کړو او د هغوی په حق کې به د خیر او مغفرت دعا کوو.






زده کوونکي دې د شهید محمد موسی شفیق د خدمتونو او کارنامو په هکله یو له بل سره مباحثه وکړي.




۱- شهید محمد موسی شفیق چېرته پیدا شوی، خپلې لومړنۍ او ثانوي زده کړې یې چېرته بشپړې کړې دي؟

۲- د شهید محمد موسی شفیق د تر ټولو ارزښتناکو دندو نومونه واخلئ.

۳- د شهید محمد موسی شفیق مهمې کارنامې بیان کړئ.




د شهید محمد موسی شفیق د شخصیت او کارنامو په اړه یوه مقاله ولیکئ چې تر لسو کرښو لږه نه وي.





## ملي پيغام

ملي پیغام هغه غږ دی چې د ټولنې افرادو ته د اسلامي ورورولۍ، برابرۍ، عدالت، زړه سوي، سوکالۍ، سربښندنې، امنیت او خوندیتوب ډاډ ورکوي. ټولنه د ټینګښت، یووالي او پرمختګ لور ته بیايي. په پای کې د دنیا او اخرت سرلوړي او بریالیتوب د انسان په برخه کوي. په ملي پیغام کې ستر پیغام نغښتی او یو ملي ارمان پکې پروت دی. هغه ځو واره ولولۍ، پیغام او ارمان پکې پهګوته او د سرته رسولو لپاره یې هلې ځلې وکړئ، عبرت ترې واخلئ او د خپل راتلونکي ژوند مشال یې کړئ.

**ملي پيغام**

لکه نسیم د باغ ګلونو ته پیغام دی زموږ
هدف دکار او د خدمت وطن او قام دی زموږ
موږه افغان ته یو قوي ملي وحدت جوړوو
د تفرقې د امتیاز په کور قیامت جوړوو



وراني ويجاړې د وطن په خپل همت جوړوو
عدل انصاف او مساوات روح د نظام دی زموږ
لکه نسیم د باغ ګلونو ته پیغام دی زموږ
موږه په دین او په ملت باندې خپل سر ورکوو
د جفا غشو له سنګر غوندې ټټر ورکوو
واړه افغان ته د نهضت نوی خبر ورکوو
عقیده پاکه، پاك ایمان په پاك اسلام دی زموږ
لکه نسیم د باغ ګلونو ته پیغام دی زموږ
موږه تعمیم د معارف په خپل وطن کې غواړو
نوی آهنګ د نوي ژوند په خپل چمن کې غواړو
دښمن د حق او حریت سر په کفن کې غواړو
خدمت د قام ته چې ولاړ وي پرې سلام دی زموږ
لکه نسیم د باغ ګلونو ته پیغام دی زموږ
وطن نه بد بد رواجونه رسومات ورکوو
رنځونه، لوږې، بې علمي او خرافات ورکوو
د کار له منځ منځه بې ځایه سکنات ورکوو
بنا پر حسن اعتماد باندې مرام دی زموږ
لکه نسیم د باغ ګلونو ته پیغام دی زموږ
ظلم رشوت تملق دروغ او هم خیانت نه منو
غواړو په زړه کې درد او رحم قساوت نه منو
سره همدرد یو بېدردي چې په رسمیت نه منو
ملا، عالم، مخلص خادم ته احترام دی زموږ
لکه نسیم د باغ ګلونو ته پیغام دی زموږ
ملي مفاد پر شخصیاتو مقدم دي موږ ته
حکم د دین، عالم او مشر محترم دی موږ ته
دفع د ظلم په بل ظلم هم ستم دی موږ ته
د قوم خادم چې وي هغه زلمی امام دی زموږ
لکه نسیم د باغ ګلونو ته پیغام دی زموږ






زده کوونکي دې په ډلو کې د لاندې بیتونو معنا او مفهوم څرګند کړي او د ډلو استازي دې نور ته ووایي.

«موږه افغان ته یو قوي ملي وحدت جوړوو
د تفرقې د امتیاز په کور قیامت جوړوو
ورانی ویجاړې د وطن په خپل همت جوړوو»




۱ - د پورته شعر مفهوم څه شی دی؟
۲ - په پورته شعر کې کوم پیغامونه نغښتي؟ بیان یې کړئ.




د پورته شعر مفهوم په خپله ژبه په کتابچو کې ولیکئ او په بل ساعت کې یې ټولګي ته راوړئ.





## له هیواد څخه د دفاع په لاره کې د افغانانو ملي یووالی

افغانستان د تاریخ په مختلفو پړاوونو کې د پردیو تر یرغلونو او بریدونو لاندې راغلی. ددې خاورې اوسېدونکو د بهرنیو تېري کوونکو په وړاندې خپل ټول اختلافونه یوې خوا ته پرېښي او په ټینګ هوډ، عزم او یووالي یې هغوی ته غاښ ماتوونکي ځوابونه ویلي دي. په دې لوست کې به د ګران هیواد په دفاع کې د خپلو نیکونو د سربښندنو په اړه معلومات تر لاسه کړو.

### د سترو یرغلګرو ماتې

افغانستان د نړۍ په تاریخ کې د بشري تمدنونو لرغونې زانګوه ده. دغه سیمه د جغرافیایي او پوځي موقعیت له مخې د تاریخ په بېلابېلو وختونو کې د نړۍ د سترو یرغلګرو او ګاونډیو تر تېرېو لاندې راغلې ده. ددې سیمې خلک، چې بېلابېل قومونه، توکمونه، فرهنګونه، ژبې او دودونه لري، د نړیوالو تېري کوونکو په وړاندې یو موټی شوي او هغوی ته یې سختې ماتې ورکړې دي.
زموږ د خاورې خلکو له میلاد څخه د مخه په څلورمه پېړۍ کې د لوی سکندر د یرغلونو پر وړاندې په مېړانه او یووالي د خپلې خاورې دفاع کړې ده. د سکندر د تېري کوونکو او نه ماتېدونکو لښکرو په ګډون یې هر یرغلګر ځواک ته ټکوونکي او کلک ګوزارونه ورکړي دي.



په ۱۹ او ۲۰ پیړۍ کې د برتانیې ښکېلاکګرې امپراتورۍ زموږ پر خاوره بریدونه وکړل، خو د نوموړې امپراتورۍ تېرې کوونکی پوځ څو څو ځلې ددې خاورې د زړورو او مسلمانو بچیانو د جهاد په واسطه له ماتې سره مخامخ شوی دی. د افغانستان او انګلیس د دریو مشهورو جګړو تاریخ د افغانستان د خلکو د یووالي، پیوستون، سرښندنې او اتلولیو ښه شاهد دی.
افغانستان لومړنی هېواد دی چې له انګلیسي ښکېلاکګرو څخه یې خپله خپلواکي تر لاسه کړې په سیمه او نړۍ کې تر ښکېلاک لاندې هېوادونو د خپلواکۍ او آزادۍ غوښتنې په ډګر کې مخکښ شوی دی.
د شلمې پېړۍ په وروستي نیمايي کې د نړۍ لوی قدرت، شوروي اتحاد د خپل پوځي قدرت په اوج کې پر افغانستان تېری وکړ. په لسګونو زره وسله وال ځواک، چې په پرمختللو پوځي تجهیزاتو سمبال و، د هوا او ځمکې له لارې یې زموږ پر هېواد برید وکړ.
د افغانستان مسلمان او زړور ملت په ټول هېواد کې د شوروي اتحاد د سور پوځ د تېري پر وړاندې ودرېد او په تش لاس، خو په ټینګ ایمان او هوډ د دې خاورې د ټولو اوسېدونکو په یووالي یې جهاد ته دوام ورکړ. یو نیم میلیون شهیدان یې ورکړل او په ملیونونو خلک مهاجر شول. په سلګونو زره یې معلول، کونډې او یتیمان شول، خو په پای کې یې د شوروي سور پوځ له خپل هېواد څخه ایستلو ته اړ ایست او ازادي یې تر لاسه کړه.

## د تېری کوونکو پر وړاندې د افغانانو د بریالیتوب راز

ټول په دې پوهېږو چې کله افغانستان د تاریخ په بېلابېلو دورو کې د تېري کوونکو تر بریدونو لاندې راغلی، له پوځي پلوه د تېري کوونکو له ځواک سره د پرتلې وړ نه و. نو د نړۍ د لویو قدرتونو پر وړاندې د دغه ملت د بري لامل څه شی و؟
ددغه پوښتنې ځواب په یوې کلمې کې پروت دی؛ د افغانستان ولس یوازې د ایمان په ځواک او په هېوادنۍ مینې، یووالي، پیوستون او د سرښندنې په روحیه پر خپلو دښمنانو بری تر لاسه کړی دی.




زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. یوه ډله دې د انګلیس د ښکېلاک پر وړاندې د افغانستان د خلکو د جګړو په اړه خبرې



وکړي. بله ډله دې د پخواني شوروي اتحاد د تېري پر وړاندې د افغانستان د خلکو د يووالي او پيوستون او پر افغانستان باندې د تېرې په نتيجه کې د شوروي اتحاد د برخليک په اړه خبرې وکړي.




۱. ولې د افغانستان خاوره په بېلابېلو وختونو کې له بهرنيو بريدونو سره مخامخ شوې وه؟
۲. د تېري کوونکو پر وړاندې د افغانستان د خلکو چلن څرنګه و؟ آيا سترو ځواکونو ته يې سر ټيټ کړی او يا ورته تسليم شوی دی؟
۳. له ميلاد څخه دمخه په څلورمه پېړۍ کې زموږ خاوره د کوم نړيوال قدرت تر تېري لاندې راغله او د دغو تېري کوونکو پر وړاندې د افغانانو چلن څه ډول و؟
٤. د انګليس د ښکېلاک پر وړاندې د افغانانو جهاد په سيمه او نړۍ کې څه اغېز رامنځته کړ؟
۵. د شلمې پېړۍ په وروستۍ نيمايي کې زموږ پر خاوره د نړۍ د کوم قدرت له خوا يرغل وشو او پر افغانستان د دغو بريدونو د تېري کوونکي قدرت برخليک څه شی شو؟
٦. د بهرنيو نړيوالو تېري کوونکو د تېريو په وړاندې د افغانستان د خلکو د بري راز څه شی و؟




زده کوونکي دې د لوست د موضوع په اړه اووه کرښې مقاله وليکي.







## حب الوطن من الایمان

افغانستان زموږ ګران هېواد دی. ساتل او آبادول يې زموږ د ټولو افغانانو ګډه دنده ده. موږ هر يو کولای شو، په يو ډول نه يو ډول خپل هېواد ته خدمت وکړو، ودان يې کړو، د نړۍ له نورو هېوادونو سره يې په ليکه ودروو. خپلمنځي اړيکې ښې کړو، يو بل ته د ورورۍ لاسونه ورکړو او د خلکو ترمنځ يې اتفاق او اتحاد رامنځ ته کړو. دا احساس په ځانونو کې ژوندی کړو چې د ژوند د ټول بریالیتوب، پرمختګ او سوکالۍ راز په يووالي او يو د بل په منلو کې نغښتی دی.

ستاسو په اند له هېواد سره مينه څه معنا لري او د دغه مينې د لا پياوړتيا لپاره څه کول په کار دي؟

هېواد زموږ ګډ کور دی. د کور هر يو غړی دنده لري د خپل کور د ودانولو، ښايسته کولو او د کورنۍ د غړو د خوشاله او سوکاله ساتلو لپاره کار وکړي او هرڅوک له خپل وس او توان سره سم يوه دنده پر مخ بوځي.

له هېواد سره مينه له موږ څخه غواړي چې د خپل هېواد ځمکنۍ بشپړتيا، سياسي، اقتصادي او فرهنګي خپلواکي خوندي کړو. خپله ژبه، فرهنګ او دودونه وساتو. ددې ترڅنګ د نورو هېوادونو د بریالیتوب رازونه ومومو، د هغوی له صنعت څخه ګټه واخلو، خپل صنعت او توليد پياوړی کړو او له هغوی سره د ښو دوه اړخيزو اړيکو او ګډو مرستو لارې چارې ولټوو.

له بده مرغه اوس زموږ هېواد او هېوادوال له ناخوالو سره لاس او ګرېوان دي او کړوونکی او



ستونزمن ژوند لري. هېواد مو نه يوازې تر نورو هېوادونو وروسته پاته شوی، بلکې لا نور وران او ويجاړ شوی دی. له يوې خوا جګړو ځپلی او له بلې خوا يې بې وزلي، بېکاري او له علم او پوهې لرېوالی ځوروي. موږ د افغانانو او د دغه هېواد د اوسېدونکو په توګه دنده لرو چې خپل هېواد له دغه ناوړه حالت څخه راوباسو او خپل خلك او ولس نېکمرغه کړو.
د هېوادپالنې غوښتنه دا ده چې له خپلو شخصي ګټو تېر شو، ملي ګټې او ټولنيزې ګټې غوره وبولو او دمخه يې کړو او په خپل ځنګ کې يو بل ومنو. په دې لاره کې له هېڅ ډول ستړياوو او سرښندنو څخه ځانونه و نه سپموو.
زموږ دنده دا ده چې د هېواد د ورانۍ مخه ونيسو او د دې متل له بېځايه کارولو څخه ډډه وکړو چې: «نه کار هلته څه کار.» دا خپله ايماني او وجداني دنده وګرځوو چې هېواد، آباد، سمسور، خړوبه او ښېرازه کړو او د هغه د لا آبادۍ لپاره له رغند فکر او ګټور عمل څخه کار واخلو.
د هېواد د عامه شتمنۍ يوې ډېرې کوچنۍ برخې ته زيان رسول، د بېلګې په توګه له يوه دېوال څخه د يوې خښتې بې ځايه کول هم له هېواد سره دښمني ده. موږ ته ښايي يوازې په دې بسنه ونه کړو، چې هېواد مو ودان کړو، بلکې د هېوادپالنې اصلي معنا دا ده، هغه څوك چې هېواد ورانوي، لاس يې ونيسو او پر وړانديې يې خنډ شو.
زموږ هېواد پالنه دا نه ده چې په خپله بدې وانخلو، بلکې د هېوادپالنې غوښتنه داده چې د بدو اخيستلو مخه ونيسو او د خپل نظام د سمون لپاره هڅه او هاند وکړو.
ټولنيز احساس هم ټولنه او هم هېواد ښېرازه کوي اوهم يې وګړي سوکاله او د ښه ژوند خاوندان کوي.
که موږ هر يو د ټول افغانستان په اړه فکر وکړو او د افغان ولس د ښېرازه کولو لپاره په ګډه متې راونغاړو، نو بيا به مو هېواد ودان، پرمختللی او موږ به نېکمرغه شو.
يو شاعر له هېواد سره د مينې په اړه ډېر خوږ شعر ويلی دی چې ستاسو د احساس د پياوړتيا لپاره يې دلته راوړو:

### زما وطنه

ای زمــــا وطنـــــــه د لعلونو خـــزانې زما
ستـــــا هره دره کې دي د تورو نښــــانې زما
ستا سر چې وي ټيټ نو به زه شان او شوکت څه کړمه
ته چې خوار و زار يې زه به مال او دولت څه کړمه
ته چې وران ويجاړ يې زه به خوب او راحت څه کړمه
مسته به دې خاوره کړم په وينې مستانې زمــــا



ای زما وطنه

عقل مې ایرې شه ستا لپـــــــاره د فکرونو نه
سترګې مې قربان شـــه ستا لپاره د سوچونو نه
ځار شمه قــربان شم ستا د خاورو د کورونو نه
ستا زړه کې پرتې دي ټولې تلې زمانې زمـــــا
ای زما وطنه

یا به دې زه سیال کــــړمه وطنه د جهـــــان
یا به ستا په پښو کې تورې خاورې کړمه ځـــان
ځان به درې ورې کړم خو تا به کـــــړم ودان
نر یمه، پښتون یم تاته یادې افسانې زمـــــا
ای زما وطنه

غني خان




زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي او د پورته شعر د مفهوم په اړه دې خبرې وکړي، بیا دې د ډلو استازي نورو ټولګیوالو ته بیان کړي.




۱ - څو تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او و دې وايي چې د دوی په اند «حب الوطن من الایمان» څه معنا لري؟
۲ – یو تن زده کوونکی دې د شخصي او ملي شتمنیو توپیر څرګند او بېلګې دې وړاندې کړي.
۳ – دا مفهوم څنګه څرګندولای شئ چې شخصي ګټې په ملي ګټو کې نغښتې دي؟ یو تن زده‌کوونکی دې د نورو په وړاندې خپل نظر څرګند کړي.
٤ – دوه تنه زده کوونکي دې پورته ترانه په ښکلي غږ ووايي.




زده کوونکي دې د هېوادپالنې په اړه په کورونو کې یوه مقاله ولیکي او په بل ساعت کې دې یې ټولګي ته راوړي.







## د افغان ولس ځانګړتیاوې

الله تعالی یو شمېر ولسونو ته ځینې خویونه او دودونه ورکړي وي چې په نورو ولسونو کې په روښانه ډول نه تر سترګو کېږي. دا دودونه او عادتونه د هغه ولس ځانګړتیاوې بلل کېږي. افغانان هم د ځینو صفاتو او خصلتونو له مخې د تاریخ په اوږدو کې ځلیدلي او د ویاړ چارې يې تر سره کړې دي. دا ویاړنې کومې دي او د کومو مهمو ځانګړتیاوو له مخې ویاړلي او پرتمین ولس بلل کېږي؟ په دې لوست کې به دې پوښتنو ته ځواب وویل شي.

د افغانستان خلکو ته الله تعالی ځینې ځانګړتیاوې ورکړې چې د هغو له امله د تاریخ په اوږدو کې نومیالي او سرلوړي پاتې شوي دي. د نړۍ په کچه سترې کارنامې لري، په سختو وختونو کې يې هم خپله خپلواکي ساتلې او هم خپلو ګاونډیو ولسونو او هېوادونو ته د لارې مشال شوي، له دې امله د نړۍ پوهانو افغانستان د آسیا زړه بللی دی.

کله چې د اسلام مبارك دین زموږ هېواد ته راورسېد، د افغانستان خلکو په ډېره مینه قبول او

د ختیځ او شمال په لور یې د هغه په خپرولو کې ستره ونډه  سرته ورسوله. افغانانو انګلیسان په داسې وخت کې مات کړل، چې امپراتوري یې له ختیځه تر لویدیځه غځېدلې او لښکرې یې د هغه وخت تر ټولو سنبال پوځونه ګڼل کېدل. همدا راز افغانانو د شوروي سرو لښکرو ته په داسې حال کې ماتې ورکړه چې په لومړي سر کې  دې ولس ته په مادي لحاظ د جهاد بریالیتوب یو څه ناشونی کار برېښېده.
د افغانستان خلک ډېر غوره دودونه، خویونه او ځانګړتیاوې لري چې ځینې مهمې یې په لاندې ډول دي:

**دینداري**: د افغانستان وګړي مسلمانان دي، د اسلام د مبارك دین په لارويتوب وياړي. د علماوو، اسلام ته د بلونکو او پر اسلام  مینو خلکو درناوی کوي. له هغه چا کرکه کوي چې په دین کې لټي او تنبلي وښيي.

**زيار او کوښښ**: افغانان زیارکښ خلك دي، ستونزې او ربړې ګاللی شي، د سختو چارو په ترسره کولو کې له زغم څخه کار اخلي. همدا خوی دوی ته ورتیا ورکوي چې د مېړانې درېځ وساتي او زور زیاتي ته سر ښکته نه کړي.

**زړه سوی او انصاف**: افغانان د زورورو په وړاندې د غرونو په څېر درېږي، خو پرکمزورو زور زیاتی بد ګڼي، په زړه سوي او د مظلوم په لاسنيوي وياړي.

**د امانت ساتل او وفا**: افغانان د امـــــانت د ساتلو خوی خوښوي، په وعده وفا د مېړونو کمال شمېري، په امانت کې خيانت او د وعدې پر وړاندې جفا ناځواني او د شرم چاره بولي.

**سرښندنه او ایثار**: ایثار او قرباني په افغاني کلتور کې منل شوی غوره خصلت دی.د خپلو ګټو پر ځای د نورو ګټو ساتلو ته سرښندنه وايي. په دې خوی د بشري ټولنې تر منځ يووالی ټينګېږي او ټولنه د نېکمرغۍ په لور پر مخ ځي.
د پورته غوره خویونو تر څنګ ځینې نور ښه اخلاق لکه د ښځو درناوی، مېلمه پالنه، حیا او ناموس ساتنه هم د افغانانو له ځانګړتیاوو څخه شمېرل کېږي.
موږ د افغانستان د اوسني او راتلونکي نسل په توګه دا دنده لرو چې ښه خویونه پیاوړي او له ناوړو څخه ځان وساتو.






زده کوونکي دې په ډلو کې د پورته ښو ځانګړتیاوو ترڅنګ د افغانانو نور ښه خویونه هم ولیکي او له نورو ټولګیوالو سره دې یې شریک کړي.




۱. افغانان په تاریخ کې نومیالي خلک دي، د دې وینا په ثابتولو کې دوې بېلګې د دلیل په توګه وواياست.

۲. د افغانانو د دینداریٔ، امانتداریٔ او وفا ځینې بېلګې بیان کړئ.

۳. د زیار ګاللو په ورټیا په یو ولس کې کوم کمالونه رامنځته کېږي؟

٤. زړه سوی، ایثار او قرباني څه ډول صفتونه دي؟




د خپلمنځي شخړو او جګړو د زیانونو په اړه یوه مقاله ولیکئ چې له یوه مخ څخه لږه نه وي.





## شهيد محمد هاشم ميوند وال

زموږ هېواد د ملي اتلانو ټاټوبی دی. د هغوی یاد زموږ تېر تاریخ ژوندی کوي. موږ د هغوی د ژوند په لارو چارو پوهوي او لارښوونه راته کوي چې د هغو د پښو پر پلونو پل کېږدو او هېواد ته د خدمت وړ وګرځو. دلته د هېواد د یو بل نومیالي او پر هېواد او هېوادوالو مین شخصیت، محمدهاشم میوندوال یادونه کوو او د هغه ژوند ته یو ځغلند نظر اچوو.

شهید محمد هاشم میوندوال زموږ د ګران هېواد له وتلو سیاسي او فرهنګي څېرو څخه دی. محمد هاشم میوندوال د ملا عبدالحلیم زوی، پر ۱۲۹۸ لمریز کال په کابل ښار کې زېږېدلی دی. کورنی یې اصلاً د غزني ولایت د مقر ولسوالۍ اوسېدونکې وه.
میوندوال خپلې زده کړې د کابل ښار د غازي او حبیبیې په لېسو کې بشپړې کړې. د خپل لوړ استعداد له امله یې په مطبوعاتو او ژورنالېزم کې کار پیل کړ. نوموړي د انیس ورځپاڼې د مدیر، په هرات کې د اتفاق اسلام ورځپاڼې د مدیر، د دایرة المعارف د مدیر او وروسته د مطبوعاتو د مستقل رئیس په توګه دندې ترسره کړې دي. میوندوال د خپلې پوهې او سیاسي درایت له امله د بهرنیو چارو وزارت د سیاسي مرستیال، په پاکستان او د امریکا په متحدو ایالتونو کې د افغانستان

د سفیر په توګه کار کړی دی.
میوندوال د مطبوعاتو او ډیپلوماسی په برخه کې ښه ځلېدلی او د هغه وخت په حکومت کې یې د مطبوعاتو د وزیر په توګه دنده سرته رسولې ده. میوندوال د خپلې وړتیا او پوهې پر بنسټ د هغه مهال د پاچا له خوا د افغانستان د صدر اعظم په توګه د وخت ولسي جرګې ته د باور تر لاسه کولو لپاره وروپېژندل شو. میوندوال د خلکو له استازو څخه د باور رایه تر لاسه او څه ناڅه دوه کاله یې د صدراعظم په توګه دنده سرته ورسوله.
میوندوال د خپلې صدارتي دندې پر مهال د افغانستان هر اړخیز پرمختګ ته، په ځانګړې ډول، پوهنې، لوړو زده کړو، صنعت او کرنې ته زیاته پاملرنه وکړه او په دې لاره کې یې بریالي ګامونه پورته کړل. میوندوال هیله لرله افغانستان د یوه آزاد او مستقل هېواد په توګه له ګاونډیانو او نړۍ سره ښې اړیکې ولري؛ له همدې امله یې کوښښ کاوه چې له نړۍ سره د افغانستان دپلوماتیکې اړیکې پراخې شي.
شهید میوندوال د هغه وخت د شوروي اتحاد له بد نیت څخه ډار درلود چې د کمونیزم د پراخېدو مشري یې کوله، ځکه خو یې هڅه وکړه په افغانستان کې د شوروي اتحاد د اغېز او د کمونیستي افکارو د خپرولو مخه ونیسي.
میوندوال د رسمي کارونو ترڅنګ د قلم او لیکوالۍ لېوال و، له دې امله یې فرهنګي کارونو ته ځانګړې پاملرنه درلوده.
مرحوم محمد هاشم میوندوال په هېواد کې د ټولنیز عدالت د ټینګښت، د بې وزلۍ او وروسته پاتېوالي د له منځه وړلو په لاره کې هلې ځلې او مبارزه وکړه.
شهید میوندوال وصیت کړی و چې له مړینې وروسته یې شخصي شتمني او استوګنځی بیت المال ته وسپارل شي.
په افغانستان کې شوروي پلوو کمونیستي بهیرونو شهید محمد هاشم میوندوال د خپل نفوذ او کمونیستي مفکورو د خپرولو پر وړاندې ستر خنډ باله، له همدې امله یې د ۱۳۵۲ هـ. ش. کال د سرطان د ۲٦ نېټې له کودتا وروسته د یوې توطیې په ترڅ کې بندي او وروسته یې په شهادت ورساوه.
له شهید استاد منهاج الدین ګهیځ وروسته، محمد هاشم میوندوال لومړنی ځلېدلی شخص و، چې د کمونیزم د پلویانو په لاس په شهادت ورسېد.
افغانان به د خپل ګران هېواد د پرمختګ او ترقۍ لپاره د شهید محمد هاشم میوندوال خدمتونه هېر نه کړي.






زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي، لومړۍ ډله دې د شهید محمد هاشم میوندوال د فرهنګي فعالیتونو په اړه او دویمه ډله دې د نوموړي د سیاسي خدمتونو په اړه یو له بل سره خبرې اترې وکړي او لنډیز دې ټولګیوالو ته واوروي.




۱- محمد هاشم میوندوال څوک و او چېرته زیږېدلی و؟
۲- د شهید محمد هاشم میوندوال د مهمو دندو نومونه واخلئ.
۳- شهید میوندوال د افغانستان د پرمختګ لپاره څه خدمتونه کړي دي؟




زده کوونکي دې د شهید محمد هاشم میوندوال په اړه معلومات تر لاسه او په ټولګي کې دې بیان کړي.



## ولې له خپل هېواد، افغانستان سره مينه لرو؟

افغانستان زموږ ښکلی هېواد دی. موږ له خپل هېواد سره مينه لرو. تل د خپل هېواد د پرمختګ او سمسورتيا او د هېوادوالو د سوکالۍ په فکر کې يو. له هېواد سره مينه او دوستي له هېواد سره د وفادارۍ نښه ده. په دغه لوست کې په دې اړه لا زيات معلومات تر لاسه کوو.

### د افغانستان مادي او معنوي شتمني

موږ بايد د خدای جل جلاله شکر پرځای کړو؛ ځکه په خپله مهرباني سره يې موږ له نيستۍ څخه هست کړي او د ژوندانه له نعمت څخه يې برخمن کړي يو، موږ يې د افغانستان په نامه په يوه اسلامي هېواد کې پيداکړي يو. زموږ هېواد افغانستان له طبيعي پلوه د نړۍ له ښکلو هېوادونو څخه شمېرل کېږي. دغه هېواد د لوړو دنګو غرونو او ځپاندو سيندونو، شنو درو او هوارو دښتو په لرلو د هر ليدونکي سترګو ته روښنايي ورکوي او زړونه يې غوړوي.

دغه راز زموږ هېواد تر ځمکې لاندې شتمنيو له امله د سيمې د هېوادونو په پرتله ډېر بډای هېواد دی. ګرانبيه ډبرې يې نړيوال شهرت لري، لکه، د بدخشان لعل يې د خاصو او عامو متل دی.

د افغانستان خاوره کرنیزه او د څارویو روزنې ته برابره ده. افغانستان ډېره ښه هوا او اوبه لري، اوبه يې خوږې او رڼې، خواړه یې ګټور او مېوې يې خوږې او خوندورې دي. افغانستان د ځیرکو او پوهو خلکو د موجودیت له امله د لرغونو زمانو راهیسې د بېلابېلو تمدنونو زانګو وه. بلخ د تاریخ له ډېرو لرغونو مدنیتونو او ښارونو څخه شمېرل کېږي.
زموږ هېواد افغانستان په خپله غېږ کې نابغه ګان، پوهان او مشران روزلي دي چې کتابونه، آثار او افکار يې په بېلابېلو علومو او فنونو کې د بشري او اسلامي ویاړنو او فرهنګونو یوه برخه جوړوي. د امام اعظم ابوحنیفه رحمه الله علیه، ستر عارف خواجه عبدالله انصاري، امام ابو احمد غزالي، ابوریحان البیروني، ابن سینای بلخي، سنايي غزنوي، مولانا جلال الدین محمد بلخي، پیر روښان، عبدالرحمان بابا، خوشحال خټک، میا فقیرالله جلال آبادي او سید جمال الدین افغان په څېر پوهان، حکیمان، فیلسوفان، متصوفان او د تورې او قلم خاوندان لري.

## افغانستان پر موږ ګران دی

د افغانستان خلک خدای پال، متدین او پر آزادۍ مین دي. خپل هېواد ورباندې ګران دی. که کله دا هېواد د دښمنانو تر بریدونو لاندې راغلی او یا له ګواښ سره مخ شوی، افغانان د همدغو ښو ځانګړتیاوو د لرلو له امله په یووالي او اتفاق راپاڅېدلي او له خپل هېواد څخه يې دفاع کړې ده. د شلمې پېړۍ په لومړیو کې انګلیسانو او په دې وروستیو کې د پخواني شوروي اتحاد سرو لښکرو زموږ د هېواد د نیولو او زموږ د دیني او ملي ویاړنو تر پښو لاندې کولو لپاره بریدونه وکړل، خو د افغانانو له سخت غبرګون سره مخامخ او سرماتي او غاښ ماتي له هېواد څخه وتلو ته اړ ایستل شول. د همدغو ځانګړتیاوو او خویونو له مخې افغانستان د نړۍ د امپراتورانو د مړستون او هم د آسیا د زړه په نامه یاد شوی دی.
له همدې امله موږ له خپل هېواد افغانستان سره د زړه له کومې مینه لرو او د هغه له پولو څخه د دفاع لپاره هر ډول سرښندنې ته تیار یو. موږ په خپل اسلامي هېواد، متدینو، سرښندونکو او باتورو خلکو ویاړو.
موږ سبق وایو او زیار باسو چې د هېواد په ګټورو غړو بدل شو او د خپل هېواد د ودانۍ او بیارغاولو لپاره کار وکړو. هېواد پالنه د وفادارۍ او مېړانې نښه ده. موږ د افغانستان اوسېدونکي، ټول له یو بل سره خویندې او ورونه یو، یو له بل سره مینه لرو او درناوی یې کوو.



## هېوادپالنه له نورو خلکو څخه د کرکې کولو په معنا نه ده

باید هیره نه کړو هېوادپالنه په دې معنا نه ده چې موږ له نورو ملتونو او هېوادونو څخه کرکه ولرو او نورو ته په سپک نظر وګورو. موږ د بشري ټولنې یوه برخه یو. له دې امله ټولو سوله غوښتونکو او خیرغوښتونکو انسانانو ته درناوی لرو، په تېره بیا له مسلمانانو سره په هر ځای کې چې وي، مینه لرو او درناوی یې کوو. ټول مسلمانان له یو بل سره خوېندې او وروڼه دي. که هېوادونه مو جلا دي، زړونه مو یو دي.




زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي. د افغانستان د دیني او فرهنګي ویاړنو په هکله دې خبرې وکړي او په پای کې دې نتیجه د خپل استازي په واسطه ټولګیوالو ته وړاندې کړي.




۱. موږ ولې د خدای جل جلاله شکر اداء کوو؟
۲. ولې افغانستان په لرغونو وختونو کې د بېلابېلو تمدنونو زانګو وه؟
۳. د افغانستان خلکو د اسلام پر سپېڅلي دین له مشرف کېدو وروسته اسلام ته څه خدمت وکړ؟
٤. د افغانستان د دوو سترو پوهانو نومونه واخلئ
۵. د افغانستان خلکو د شلمې پېړۍ په لومړیو او وروستیو کې کومې امپراتورۍ ته ماتې ورکړه؟
٦. ولې افغانستان د امپراتوریو مرستون نومول شوی دی؟
۷. ولې پر موږ خپل هېوادګران دی؟
۸. هېواد پالنه له نورو څخه د کرکې په معنا نه ده. دغه مطلب بیان کړئ.




د هېواد پالنې په اړه یوه مقاله ولیکئ چې تر لسو کرښو لږه نه وي.





# آزادي د الله تعالی نعمت او انساني حق دی

آزادي څه مفهوم لري؟ په تېرو زمانو او بشري تمدنونو کې ازادي څنګه وه؟ اسلام څرنګه انسان ته ازادي په برخه کړه؟ څرنګه کولای شو له خپلې ازادۍ څخه په سمه او معقوله توګه ګټه واخلو؟
په دغه لوست کې به دغو پوښتنو ته ځوابونه وړاندې کړو.

## د آزادۍ مفهوم

الله تعالی انسان پیدا کړ. هغه ته یې عقل او اراده ورکړه. په دې ورکړې سره یې هغه پر نورو مخلوقاتو غوره وباله. الله تعالی انسان پیدا کړ چې د خپل خالق او واحد خدای (جل جلاله) عبادت وکړي، په عزت، کرامت او سرلوړۍ سره ژوند تېر کړي، خو لیدل کېږي چې ځیني انسانان په مختلفو پړاوونو کې د طغیان او سرغړونې له امله د خپلې هوا او هوس تابع شوي او یا یې د ناپوهۍ له امله د نورو انسانانو غلامي منلې ده. ازادي د الله تعالی نعمت، پېرزوینه او د انسان طبیعي حق دی. باید انسان له دغه الهي نعمت څخه ګټه پورته کړي او څوک له هغه څخه دغه طبیعي حق سلب نه کړي.

## آزادي د اسلام له نظره

پوهانو او بشري تمدنونو د آزادۍ ډول ډول تعریفونه کړي دي؛ په ځینو فکري نظریو او د نړۍ په سیاسي نظامونو کې د انسان آزادي په بشپړه توګه سلب شوې. په اروپا کې د منځنیو پېړیو اوږد دوران او د شلمې پېړۍ سوسیالستي نظامونه یې څرګند مثالونه دي.

د منځنیو پېړیو له اوږد پړاو او په لوېدیځ کې د لبرالیزم د مفکورې له څرګندیدو وروسته، آزادي په مطلقه بڼه مطرح شوه چې د انسانانو او بشري ټولنو لپاره یې ناوړې پایلې رامنځته کړې او لا تر اوسه پورې ورسره بشریت لاس او ګریوان دی.

د اسلام سپېڅلي دین په داسې وخت کې ظهور وکړ چې بشریت د مریيتوب او فکري اختناق پر ځنځیرونو تړلی و.

د اسلام ستر پیغمبر صلی الله علیه وسلم مبعوث شو، ترڅو بشریت له هر ډول فکري اختناق او د مریيتوب له قید او بند څخه ازاد کړي. له همدې امله ډېر هغه کسان چې تر ټولو د مخه یې د اسلام سپېڅلی دین او د پیغمبر صلی الله علیه وسلم رسالت قبول کړ، مریان، بیوزلي او کمزوري کسان وو.

په اسلامي فتوحاتو کې د مسلمانانو شعار دا و: موږ راغلي یو، انسان د انسان له اسارت او بنده ګۍ څخه ازاد کړو، ترڅو د یو الله عبادت او بنده ګي وکړي. د ازادۍ او برابرۍ همدا شعار و چې په ډېره لږه موده کې د اسلام سپېڅلی دین د دنیا ګوټ ګوټ ته ورسېد او بشریت یې له هر ډول اسارت او بنده ګۍ څخه وژغوره.

## څنګه کولای شو له خپلې آزادۍ څخه سمه ګټه پورته کړو؟

سره له دې چې آزادي له ستر او لوړ ارزښت څخه برخمنه ده، خو بیا هم مطلقه آزادي نشته، ځکه مطلقه آزادي د انسان د فطرت مخالفه ده او انسان د انسانیت له لوړ مقام څخه د څارویو ټیټ مقام ته رسوي. له دې امله ځینو مسلمانو پوهانو د آزادۍ پیژندنه داسې کړې ده: پرته له دې چې خپل ځان او یا نورو ته زیان ورسول شي، له خپل حق څخه ګټه پورته کول آزادي بلل کېږي.

هېڅوك حق نه لري د آزادۍ په نامه خپل ځانته زیان ورسوي. له همدې امله په اسلام کې ځان وژنه او ځان ځورول او تعذیب حرام ګڼل شوی دی.

همدارنګه انسان دا حق نه لري، د آزادۍ په نامه نورو خلکو ته زیان ورسوي، لکه چې ویل شوي، د هر شخص د آزادۍ پوله تر هغه بریده ده چې د نورو آزادۍ ته زیان و نه رسېږي.

څرنګه چې څوك حق نه لري ستا پر آزادۍ تیری وکړي، ته هم دا حق نه لرې د نورو پر آزادۍ تیری وکړې.



مثلاً یو شخص نشي کولای د آزادۍ په نامه خپل ګاونډي ته زیان ورسوي یا تردې نامه لاندې چې دی آزاد او خپلواک دی، د خپل کور خځلې او ناپاکي د خلکو د تلو راتلو په لاره کې واچوي. یا یو زده کوونکی د آزادۍ ترنامه لاندې د ښوونځي په لاره کې خلك وځوروي، یا د خلکو کورونو ته کاڼي واچوي، یا دښوونځي وسایل او توکي مات کړي. هر انسان دنده لري له آزادۍ څخه په داسې ښه ګټه پورته کړي چې د نورو آزادیو ته زیان ونه رسېږي.

حقیقي او ریښتني آزادي دا ده چې انسان خپل حق او د نورو حقوق و پېژني او رعایت یې کړي. حقیقي آزادي دا ده چې یو انسان پر بل انسان ظلم او تېری ونه کړي او نه چاته اجازه ورکړي چې پر هغه ظلم او تېری وکړي. حقیقي آزادي داده چې انسان د حق په ویلو کې له هېچا څخه ونه وېرېږي، له بېوزلو او کمزورو څخه دفاع وکړي او د اړو او ضعیفو خلکو مرسته وکړي.




زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي. هره ډله دې له خپله فکره آزادي وڅېړي. د ډلو نظر دې توحید شي او استازي دې یې نورو ټولګیوالو ته واوروي.




۱. د ځمکې پرمخ د انسان دنده او مکلفیت څه دی؟

۲. د انسانانو د ازادۍ کیفیت په تېرو دورو او په ځینو فکري مکاتبو او بشري نظامونو کې څنګه و؟

۳. د اسلام سپېڅلي دین مسلمانان څرنګه آزاد کړل؟ په فتوحاتو کې د مسلمانانو شعار څه و؟ څرګند یې کړئ.

٤. آیا د انسان آزادي مطلقه ده؟ د مطلقې آزادۍ زیانونه څه شی دي؟ څرګند یې کړئ.

٥. د لوست په رڼا کې د آزادۍ لپاره یو تعریف بیان کړئ.




تردې سرلیك لاندې (له خپلو آزادیو څخه څرنګه ګټه پورته کړو) یوه مقاله ولیکئ.






## اسلام د مسلمانانو د ملي يووالي بنسټ دی

وحدت او يووالی پياوړتيا او بې اتفاقي د کمزورۍ او بې وسۍ لامل دی. د اسلام دين په مسلمانانو کې د وحدت او اتحاد په رامنځ ته کولو او ټينګولو کې ارزښتمن رول لري. په دغه لوست کې به په مسلمانانو کې د يووالي په راوستلو کې د اسلام د دين د اغېز په اړه معلومات تر لاسه کړو.
اسلام د توحيد دين دی. خپل لارويان تل په خپلو منځونو کې اتحاد او پيوستون ته رابولي، له تيت او پرکوالي او بې اتفاقۍ يې منعه کوي.

قرآن کريم د انسانانو ترمنځ د وحدت پر اصل د ټينګار لپاره مسلمانان يو د بل ورونه ګڼلي؛ په دې معنا چې مسلمانان پر هر ځای کې د توکم، ژبې او نژاد له په پام کې نيولو پرته سره ورونه دي. د هغوی ترمنځ اړيکې ښايي د همدغه اصل پر بنسټ، يعنې د وروروګلوۍ پر بنسټ ولاړې وي.
ورور له ورور سره ملګرتيا او دوستي لري او يو د بل خير او ښېګڼه غواړي. له همدې امله په قرآن کريم او د ګران پيغمبر په احاديثو کې ځو ځو ځلې پر دې ټکي ټينګار شوی چې مسلمانانو ته ښايي په خپلو منځونو کې يوه ټوټه او متحد واوسي او داسې کار ونه کړي چې د هغوی ليکې ټوټې ټوټې او له يو له بله جلا شي.
الله تعالی په قرآن کريم کې مسلمانانو ته د يووالي امر کړی، فرمايي: ﴿وَاعْتَصِمُواْ بِحَبْلِ اللّٰهِ جَمِيعًا



﴿وَلاَ تَفَرَّقُواْ﴾(آل عمران ۱۰۳)؛ ژباړه: د الله تعالی په رسی (د اسلام په دین) منګولې ښخې کړئ او تیت او پرک کېږئ مه.
الله تعالی په یوه بل آیت کې مسلمانان له تنازع او بې اتفاقۍ څخه منع کوي؛ ځکه بې اتفاقي د مسلمانانو د کمزورۍ او ځواک د له منځه تللو لامل کېږي.
د اسلام له نظره، عقیده او ایمان یوه پیاوړې اړیکه ده چې مسلمانان له یوه بل سره نښلوي؛ هر څومره چې دا اړیکه غښتلې وي، په هماغه کچه د مسلمانانو تر منځ ورورګلوي او یووالی قوي کېږي.
د افغانستان مسلمان ولس چې له بېلابېلو قومونو او توکمونو څخه جوړ شوی دی، د اسلام د سپېڅلي او انسان جوړوونکي دین د ارزښتونو او احکامو په لاروی د [لا اله الا الله محمد رسول الله] د سپېڅلې کلمې او د توحید د بیرغ تر سیورې لاندې یو او د واحد بدن په توګه سره ژوند کوي.
ددې خاورې رښتیني زامن د خپلې اسلامي دندې په پېژندلو د هر راز تعصب او بې اتفاقۍ پر وړاندې مبارزه کوي او هېڅ ته اجازه نه ورکوي د افغان واحد ولس په منځ کې د بې اتفاقۍ تخم وکري او زموږ د مسلمانو ورونو د کمزورۍ او تفرقې لامل شي.
زموږ دین او عقیده حکم کوي یو د بل تر څنګ د ورونو په توګه سره واوسېږو، د یو بل په خوښۍ او غم کې ځانونه شریک وبولو او داسې کار ونه کړو چې خدای مه کړه زموږ د ملي یووالي د کمزوریتوب او بې اتفاقۍ لامل شي.




زده کوونکي دې په ډلو وویشل شي. هره ډله دې د هېوادوالو تر منځ د ورورګلوۍ او اتفاق په اړه خبرې اترې وکړي او د ډلو استازي دې نتیجه نورو زده کوونکو ته بیان کړي.




۱ – اتفاق ولې د ولسونو د پیاوړتیا او بې اتفاقي د ضعف او کمزورۍ لامل کېږي؟
۲ – قرآن کریم ولې مسلمانان یو د بل وروڼه ګڼلي دي؟
۳ – تر ټولو پیاوړې اړیکه چې مسلمانان یو تر بله نژدې کوي، کومه ده؟




زده کوونکي دې "د مسلمانانو په یووالي کې د اسلام رول" تر نامه لاندې یوه مقاله ولیکي چې تر اوو کرښو لږه نه وي





## ملي لنډۍ

په تېرولوستونوکې مو له هېواد سره د مینې په اړه بېلابېل لوستونه ولوستل. هېواد ته د خدمت او له هغه سره د مینې لارې چارې مو وپېژندلې. د هغو نومیالیو ژوندلیک او د هغوی کړه وړه مو ولوستل چې د خپل ژوند په اوږدو کې یې ولسونه ویښتیا، یووالي او وحدت ته په وینا او عمل رابللي او د هېواد په وړاندې یې خپل حق سرته رسولی دی.

په دې لوست کې گورو چې پښتو لنډۍ له هېواد پالنې سره د مینې او احساس په اړه څومره بډاینه لري او په څه ډول خلک رابولي چې هېودا ته خدمت وکړي، ودان یې کړي او خپلواک یې وساتي.

### تاسو د پښتو لنډیو او د هغو د جوړښت په اړه څه معلومات لرئ؟

لنډۍ د پښتو ژبې د ولسي ادبیاتو یوه ارزښتمنه او مهمه برخه جوړوي. ولسي ادب د ټولنې د ادب گړنی (شفاهي) برخه ده، د خلکو په خولو کې جاري وي او له یوه نسل څخه بل نسل ته لېږدول کېږي. د ولسي ادب لمن خورا پراخه ده. کیسې، نکلونه، متلونه، سندرې، لنډۍ او نور توکي پکې شامل دي.

دا توکي ټول د یوې ټولنې او یو ولس گډ مال او پانگه ده، ویونکی او لیکوال یې څرگند نه وي،



هېڅوك يې خپل ځانته نشي منسوبولای.
لنډۍ د بڼې او منځپانګې له مخې ځانګړی جوړښت لري. لنډۍ له دوو مسرو څخه جوړېږي. لومړنۍ مسره يې لنډه او نهه څپې (سېلابه) او دويمه يې اوږده او ديارلس څپې وي. په لنډيو کې هر راز مطالب ځايېږي. د بېلګې په توګه مينه، ښکلا، وصال، بېلتون، سرښندنه، هېواد پالنه او نور.
پر هېواد د پرديو د يرغلونو او د هغه پر وړاندې د افغاني شازلميو د مېړانې پر مهال افغاني ښځو هم له هغوی سره اوږه په اوږه برخه اخيستې، خواړه، اوبه، کارتوس، درمل، ملهم او پټۍ يې ور رسولي او د جګړې لپاره يې هڅولي دي. لاندې لنډۍ وګورئ:

په ناموس ننګ په وطن جنګ دی　　د وطن جنګ ته په غورځنګ ورځه مينه

يا هغه مهال چې د ميوند په دښته کې افغاني غازيان له يرغلګر دښمن سره په توده جګړه بوخت وو، خو د سختې ګرمۍ او د اوبو او خوراکي توکو د نه رسېدو له امله نژدې وو چې افغاني لورى ماتې وخوري. په دې وخت کې پېغله ملاله د جګړې ډګر ته رادانګي، له مړژواندي بېرغچي څخه، چې د ټپ له امله پر ځمکه لوېدلی و، بېرغ راپورته کوي او غازيانو ته داسې ناره کوي:

که په ميوند کې شهيد نه شوې　　خدايږو لاليه بې ننګۍ ته دې ساتينه

د ملي او حماسي لنډيو شمېر زيات دی. ټولې يې له هېواد سره د مينې، پر هېواد د ننګ او غيرت او له هېواد څخه د پرديو د شړلو په اړه ويل شوي دي.
وګورئ:

خاونده سل ځلې ژوند راکــــړې　　چې د وطن په مينه سل ځلې مړ شمه

بل خوا وايي:

يو خوا ته ننګ بل خواته مرګ دی　　مرګ مې قبول دی بې ننګي نه قبلومه

يوه پښتنه مېرمن نارينه پر هېواد د غليم د بريد د شنډولو لپاره هڅوي او وايي:

غزا ته لاړ شــــه چې شهيد شې　　د نغري غاړه کې نشتـــــه جنتونه

په بل ځای کې يوه مېرمن د خپل جانان د غيرت په اړه وايي:

جانان مې جنګ کې توره وکـــړه　　ځکه همزولو کې سرلوړې ناسته يمه

يو افغان ځوان، چې پر هېواد يې د ځان شهادت ارمان دی، وايي

بيرغ مې سور په قبر هسک کـړئ　　په شهادت د خپل وطن جنت ته ځمه

د پښتو د ولسي ادبياتو لمن له ډېرو ملي او حماسي لنډيو څخه ډکه ده. د هغوی لوستل، زده کړه او پر هغوی عمل کول د هېواد په اړه زموږ روحيه لوړوي او د هېواد پالنې په اړه مو احساسات راپاروي.
په پای کې دا لاندې لنډۍ ولولئ، پر مفهوم يې ځانونه پوه کړئ او خوند ترې واخلئ:



وطن زمـــــا د تن جــــامه ده — د تن جامه به لکه گل غوندې ساتمه
وطن دې شمـــــــــع ته پتنگ يې — جانانه ژر شه په وطن وكـــړه ننگونه
وطن مې گــــــــل زه يې بلبل يم — د بلبلانو چغار تل په گلــــــــــو وينه
د آزادۍ په لار كـــــې مـــــړ شې — چې جنازه دې د اسمان ملكې وړينه
خـــــدايه هغه ساعت به كوم وي — چې د وطن په بيرغ وشيندم گلـــــونه
په ناموس ننگ په وطن جنگ دی — دوطن جنگ ته په غور ځنگ ورځه مينه
تل په زحمت پسې راحـــــت وي — چا چې زحمت ليدلى وي راحت به وړينه
خـــال به د يـــــار له وينو كېږدم — چې شينكي باغ كې گل گلاب و شرموينه




زده كوونكي دې په څو ډلو وويشل شي، لومړى ډله دې د لنډۍ د ډولونو په اړه او دويمه ډله دې د لنډيو د اغيزو په اړه په خپل منځ كې خبرې اترې وكړي او پايله دې ټولگيوالو ته بيان كړي.




١- كومو اشعارو ته لنډۍ ويل كېږي؟
٢- د لنډيو ډولونه په گوته كړئ.




زده كوونكي دې له همزولو او د كورنۍ له غړو لس لنډۍ راټولې او په خپلو كتابچو كې دې وليكي او نورو زده كوونكو ته دې ووايي.





## د پوهاند شهید غلام محمد نیازي یاد

شهید پوهاند غلام محمد نیازی زموږ د هېواد یو نامتو شخصیت و. د دې لپاره چې د هغه پر ژوند لیک پوه شو او هېواد ته د خدمت جوګه شو، په دې لوست کې د هغه له شخصیت سره آشنا کېږو.

غلام محمد نیازی په ۱۳۱۱ لمریز کال کې د غزني ولایت د اندړو په ولسوالی کې په یوه دیندار او علم دوسته کورنۍ کې زېږېدلی دی.کورنۍ یې پرې د اسلام له ستر پیغمبر حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم سره د ډېرې مینې له امله د غلام محمد نوم کېښود.

### زده کړه

شهید نیازي خپلې لومړنۍ زده کړې د علي هجویري په ښوونځي کې چې په هماغه ولسوالی کې و، پیل کړې. نوموړی ځیرک او زیارکښ هلك و. درسونه یې په ډېره مینه لوستل او د نن کار یې سبا ته نه پرېښود. په ټولو ټولګیو کې یې لوړې نومرې تر لاسه کولې. لومړنۍ دوره یې په اعلی درجه پای ته ورسوله. د منځنیو زده کړو لپاره د کابل ښار ته راغی او د امام ابوحنیفه په مدرسه



کې شامل شو. غلام محمد نیازی له نوموړې مدرسې څخه هم په لوړه درجه فارغ او د لوړو زده کړو لپاره مصر ته ولېږل شو. نوموړی د الازهر د اسلامي پوهنتون د اصول دین له پوهنځي څخه د حدیثو د علم په څانګه کې ماستري واخیسته او په ۱۳۳۶ لمریز کال کې هېواد ته راستون شو.

## هېواد ته راتګ، اداري او علمي فعالیتونه

استاد غلام محمد نیازی هغه مهال هېواد ته راستون شو چې د اسلام پېژندنې په څانګه کې ترې یو متخصص او ماهر شخص جوړ شوی او د کمال لوړې درجې ته رسېدلی و. له دې امله د کابل پوهنتون د شرعیاتو د پوهنځي د رئیس په توګه وټاکل شو.

نوموړي په مصر کې د زده کړې په وخت کې له اسلامي غورځنګ سره اړیکې ټینګې کړې وې او د هغه غورځنګ له افکارو سره یې آشنایي پیداکړې وه.

شهید استاد غلام محمد نیازی زغمناك، متواضع، زړه سواند او بې ریا شخصیت و. استاد نیازی پر دین مین، د پوهې لېوال او پر هېواد او هېوادوالو مین و. له دې امله یې د اسلام په لاره کې سرښندنې، د پوهې ودې او تعمیم او د هېواد پرمختګ لپاره د خدمت ملا وتړله.

## بلنه او روڼ اندي

استاد نیازي د تدریس او علمي ارزښتناکو خدمتونو تر څنګ ځوانانو، استادانو او زده کړو ته د بلنې په کار پیل وکړ. هغه مهال یو شمېر محصلین او زده کړي ځوانان، آن چې یو شمېر استادان د ((کمونیزم)) د غولوونکو تبلیغاتو تر اغېز لاندې راغلی وو او د شوروي اتحاد د دولت په پلوی یې دیني ضد فعالیتونه کول. هغوی غوښتل زموږ د هېواد حیثیت او دین ته زیان ورسوي.

استاد نیازي چې هغه مهال یې بې پلوي او چوپتیا د دیني او ملي مسوولیت خلاف کار باله، سیاسي ډګر ته راووت، د یو شمېر استادانو او محصلینو په ملتیا یې «د افغانستان اسلامي غورځنګ» جوړ کړ، د اسلام ژغورونکو زده کړو د خپرولو او د ځوان نسل د ویښتابه لپاره یې هلې ځلې پیل کړې.

## د استاد ځیني فعالیتونه په لاندې ډول دي:

- پوهنتون ته د داخلیدو د کانکور په آزموینه کې د دیني مضامینو شاملول.
- د حقوقو له پوهنځي سره د شرعیاتو د پوهنځي د یو ځای کېدو مخنیوی چې د ځینو له خوا د شرعیاتو د پوهنځي له منځه تلل بلل کېدل.



• د شرعیاتو د علمي او څېړنیزې مجلې تأسیس.
• د کابل پوهنتون په چوکاټ کې د اسلامي څېړنو د مرکز جوړېدل.
• د روزنیزو غونډو او دیني کنفرانسونو جوړول.

## بند او شهادت

په همدغه بهیر کې محمد داود خان په ۱۳۵۲ کال کې د یوې پوځي کودتا له لارې د خپل د تره له زوی، د افغانستان له پاچا، محمد ظاهر شاه څخه واک تر لاسه کړ. محمد داود خان د کمونیستانو په لمسون چې په حکومتي اداره کې یې پراخ اغېز درلود او اسلامي فعالیتونه یې د خپل واک لپاره زیانمن بلل، د اسلامي غورځنګ یو شمېر تکړه غړي او د هغو په سر کې پوهاند غلام محمد نیازی ونیول او په زندان کې یې واچول. د محمد داود خان رژیم لومړی استاد نیازی په اعدام محکوم کړ، خو وروسته د حکم له تطبیق څخه تېر شو او په دایمي بند یې محکوم کړ. شهید پوهاند نیازي څلور کاله په زندان کې تېر کړل.

په ۱۳۵۷ هـ ش کال کې کمونیستي حکومت د شوروي اتحاد د یرغلګر دولت په ملاتړ واک ته ورسېد. کمونیستانو چې تازه یې واک تر لاسه کړی وو، له دیني عالمانو او هېوادپالو شخصیتونو سره کینه درلوده او د هغوی شتون یې د خپلې لارې خنډ باله، ځکه خو یې استاد نیازی په ډېره بې رحمۍ شهید کړ.

استاد غلام محمد نیازي، دغه باعمله عالم، پوه او زړور شخص د اسلامي مبارزو او هېواد پالو فعالیتونو له امله په زندان کې د سختو ځورونو او شکنجو په زغملو د شهادت جام وڅښه. روح دې یې ښاد او یاد دې یې تازه وي.




زده کوونکی دې په ډلو ووېشل شي. هره ډله دې د شهید پوهاند نیازي د شخصیت او کارنامو په اړه خبرې وکړي. د بحث پایله دې د استازې له خوا د ټولګي په مخ کې ووایي.




۱. د شهید نیازي کورنی په کومه انګېزه پر هغه د غلام محمد نوم ایښی و؟
۲. ولې شهید غلام محمد نیازی د زده کړې په لار کې په اعلی نومرو بریالی کېده؟
۳. کله چې استاد غلام محمد نیازی هېواد ته راستون شو، څنګه انسان تربې جوړ شوی و؟



٤. استاد نیازي هېواد ته د راتګ پر مهال کوم کارونه وکړل؟
٥. استاد نیازی ولې له یو شمېر شخصیتونو سره اسلامي غورځنګ رامنځ ته کړ؟
٦. د استاد نیازی څو صفتونه ووایئ.
٧. داود خان ولې استاد نیازی بندي کړ؟
٨. د هېواد دښمنانو ولې استاد نیازی شهید کړ؟




د شهید پوهاند نیازي د شخصیت او کارنامو په اړه یوه مقاله ولیکئ چې تر لسو کرښو لږه نه وي.










## د پخواني شوروي اتحاد د یرغل پر وړاندې د افغانستان د خلکو جهاد

جهاد څه معنا لري؟ په اسلام کې جهاد کومه مرتبه لري؟ د افغانستان مسلمان ملت ولې د پخواني شوروي اتحاد د یرغل پر وړاندې په جهاد لاس پورې کړ؟ د شوروي اتحاد پر وړاندې په سپېڅلي جهاد کې زموږ د مسلمان ولس د بریالیتوب راز په څه شي کې نغښتی و؟
په دغه لوست کې پورته پوښتنو ته لنډ ځوابونه وایو.

### جهاد څه ته وايي؟

په لغت کې د جهاد معنا هلې ځلې او زیار ایستل دي. په اسلامي شریعت کې جهاد دې ته وايي، چې که د مسلمانانو پر دین، عقیدې، هېواد او دولت باندې د دین د دښمنانو له خوا یرغل وشي، نو باید پر وړاندې یې د دفاع لپاره له هر راز هلوځلو، جنګ جګړې او سرښندنو څخه ځانونه ونه سپمول شي. د دین، هېواد او ملي ناموس دفاع د وسله وال جهاد له لارې سرته رسېږي.
که دښمنان د مسلمانانو پر دین یا خاورې یرغل وکړي، نو د اسلام پر بنسټ د الله ﷻ په لار کې

وسله وال جهاد یوه دیني او ایماني فریضه ګڼل کېږي او ډېر زیات اجر او ثواب لري. الله تعالی په قرآنکریم کې په دنیا کې له مجاهدینو سره د بریالیتوب او په آخرت کې د لوړو درجو ژمنه کړې. ځوک چې د جهاد په لاره کې وژل کېږي، د شهیدانو په نامه یادېږي او په جنت کې یې ورته د لوړ ځای او مقام زېری ورکړی دی.

## د شوروي اتحاد پر وړاندې د افغانانو جهاد

د الله ﷻ په لارکې جهاد هم د ایمان نښه ده او هم له هېواد سره د مینې. له همدې کبله کله چې د شوروي اتحاد یرغلګر دولت د ۱۳۵۸ هـ ش کال د مرغومي په شپږمه زموږ پر ګران هېواد یرغل وکړ، زموږ مسلمانو او غیرتي خلکو د دیني مقدساتو او د هېواد د خپلواکۍ د دفاع په لار کې په جهاد پیل وکړ. د دغه اسلامي هېواد ټولې جنګیالی مېرمنې او نارینه له ایمان ځخه په ډکو زړونو یو موټی د هغوی پر وړاندې ودرېدل او د پرمختګ خنډ یې شول.

شوروي دولت غوښتل زموږ هېواد ونیسي، له خپلې خاورې سره یې ونښلوي او د اسلام د سپېڅلي دین په ځای پکې بې دینه او غیراسلامي پروګرامونه پلي کړي.

د شوروي اتحاد سرې لښکرې په دغه یرغل کې په زرګونو ټانکونو، توپونو، جنګي الوتکو او لسګونو زرو وسلوالو سرتېرو سمبالې وې. افغاني مجاهدینو له عادي وسلو او ډېرو لږو امکاناتو پرته بل ځه په واک کې نه درلودل. د مجاهدینو او شوروي اردو او افغاني کمونستانو[1] ترمنځ جګړې لس کاله دوام وکړ.

---

۱- کمونستان یوه ډله ده چې د یهودي کارل مارکس له افکارو او نظریاتو ځخه پیروي کوي او په الله ﷻ او آخرت ایمان نه لري. دوی په ۱۹۱۷ م کال په روسیه کې د لینن په مشرۍ سیاسي ځواک ترلاسه کړ او وروسته یې په منځنۍ آسیا او قفقاز کې د مسلمانانو ځمکې او همدارنګه اوکراین، آذربایجان، ارمنستان او په اروپا کې د اسکندناوي هېوادونو ځنې برخې ترلاسه کړې. هغوی یې په وړو وړو جمهوریتونو ووېشل او د هغوی له مجموعې ځخه یې د شوروي اتحاد جمهوریتونه جوړ کړل. دوی د دغو هېوادونو د نیولو او خپلو کمونستي پروګرامونو د تطبیق لپاره په دې خاورو کې له شلو میلیونو ځخه زیات بېګناه انسانان ووژل. د شوروي اتحاد نظام بېحده ظالم و. شوروی اتحاد د افغانستان د نیولو او له خپل قلمرو سره د یوځای کولو لپاره زموږ پر هېواد یرغل وکړ او په پای کې خپله له ماتې سره مخامخ شو. په پایله کې د شوروي جمهوریتونو اتحاد هم وپاشل شو او په ۱۵ جلاجلا جمهوریتونو تجزیه شو.



## د شوروي پر وړاندې د افغانستان د خلکو د جهاد پایله

د جهاد په اوږدو کې زموږ میلیونونه تنه هېوادوال شهیدان، معیوب او معلول شول او په میلیونونو تنه له هېواد څخه مهاجرت ته اړ ایستل شول. د هېواد د ښارونو او ودانیو لویه برخه ویجاړه شوه، خو په پای کې د لوی الله جل جلاله په مرسته مجاهدین بریالي شول. د شوروي دولت چې هغه مهال د نړۍ تر ټولو لوی او ځواکمن دولت ګڼل کېده، له ماتې سره مخامخ شو. شوروي لښکرو د ۱۳۶۷ کال د سلواغې (دلوې) په ۲۶ نېټه زموږ هېواد په ټیټ سر پرېښود. د افغاني مجاهدینو پر وړاندې د شوروي اتحاد تاریخي ماتې د دې لامل شوه چې په نړۍ کې ډېر کمونستي رژیمونه له منځه لاړ شي او خپلواکۍ ته ورسېږي.

## د شوروي اتحاد د سرو لښکرو پر وړاندې د مجاهدینو د بریالیتوب لاملونه

هغه لاملونه چې د مجاهدینو د بریالیتوب او کفارو د ماتې لامل شول، په لاندې ډول دي:

- پر الله جل جلاله او د آخرت په ورځ د مجاهدینو قوي او غښتلی ایمان
- د افغانانو ملي یووالی
- له هېواد او خپلواکۍ سره د افغانانو بې کچې مینه

موږ د افغانستان دیندار او هېوادپالونکي زامن د خپلو مجاهدو نیکونو او پلرونو په لارې ګام ږدو، له خپل هېواد او ټاټوبي سره مینه کوو او تل د دین او هېواد د خپلواکۍ د دفاع لپاره په ځان او مال چمتو یو.




زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. د لوست د موضوع په اړه دې یو له بل سره بحث او خبرې وکړي او پایله دې د خپل استازي په واسطه په ټولګي کې بیان کړي.






۱. جهاد معنا کړئ.
۲. په اسلامي شریعت کې له جهاد څخه مطلب څه دی؟
۳. کله چې د مسلمانانو پر خاوره دښمنان یرغل وکړي، جهاد څه حکم لري؟
٤. الله تعالی له مجاهدینو سره کومه ژمنه او شهیدانو ته څه زیری ورکړی دی؟
٥. شوروی اتحاد ولې پر افغانستان یرغل وکړ؟
٦. هغه لاملونه چې د مجاهدینو د بریالیتوب او شوروي اتحاد د ماتې سبب شول، څه وو؟




زده کوونکي دې د افغانستان د خلکو د جهاد په اړه یوه مقاله ولیکي چې تر لسو کرښو لږه نه وي.





## اسلام زموږ د ملي يووالي مرکزي عنصر دی

يووالی د بري راز دی. په يووالي کې ډېرې ګټې نغښتې دي. د يووالي او اتفاق په اړه زموږ په ټولنه کې ډېرې ويناوې او کيسې شته. ملي يووالی د يو ولس د نېکمرغی، سوکالۍ او خپلواکۍ ضامن دی. هره ټولنه، چې خلک يې اتفاق ولري، د دښمن پر وړاندې، که هرڅومره لوی او زورور وي، بريالی کېږي. افغان ولس د تاريخ په اوږدو کې د خپل ملي يووالي له برکته د نړۍ سترو ځواکونو ته ماتې ورکړې او خپله خپلواکي يې د سرونو په بيه ساتلې ده.
په دغه لوست کې د ملي يووالي لاملونه او عنصرونه درپېژنو او معلومات تر لاسه کوو چې ملي يووالی د يو ولس لپاره څه ګټې لري او اسلامي ورورولي د ملي يووالي په ټينګښت او پياوړتيا کې څه رول لوبوي.

### د ملي يووالي عنصرونه

که د نړۍ د ملتونو تاريخ ته کتنه وکړو، نو دا به راته جوته شي چې د ملي يووالي تر ټولو غوره توکي نژاد، ژبې، ټبر، دين، عقيدې، فرهنګ او اقتصادي ګډو ګټو جوړ کړې دي.
د نړۍ د ولسونو په يووالي کې د يادو توکو اغېز سره توپير لري؛ ځينو ملتونو د خپل ملي يووالي

بنسټ پر نژادي، قومي او توکمیزو اړیکو ایښی، پر نورو قومونو او ولسونو باندې یې د غوره والي دعوا کړې او د نژاد پر بنسټ یې جګړې کړې دي. ځینو ولسونو د خپلې زبرځواکۍ او اقتصادي پرمختګ پر بنسټ نور ملتونه نیولي او پانګې یې ترې چور تالان کړي دي، خو داسې ملتونه هم شته چې د ملي یووالي له لارې یې د سولې، امنیت، پرمختګ او سوکالۍ زمینه ځان او نورو ته چمتو کړې ده.

## په ملي یووالي کې د اسلامي ورورګلوۍ رول

د افغانستان خلک ډېرې ګډې ګټې او ټینګې اړیکې لري چې د لرغونو زمانو راهیسې یې پاللې او ساتلې دي. زموږ د خلکو تر ټولو غوره ګډې اړیکې او ګډ ارزښتونه د اسلام سپېڅلی دین، خاوره، تاریخ، هېواد او فرهنګ دی. دا هر یو یې د ملي یووالي په ټینګښت کې مهم رول لوبوي، خو اسلامي ورورګلوي د افغانستان د ملي یووالي اساس او بنسټ جوړوي.

اسلامي عقیده زموږ د هېواد اوسېدونکي چې بېلابېل قومونه، قبیلې، فرهنګ او ژبې لري، سره نښلوي. له دې امله اسلامي ورورګلوي د نورو اړیکو په پرتله ډېره ټینګه او غښتلې ده.

اسلامي ورورګلوي د ټولنې د ټولو وګړو ترمنځ ورورولي او برابري، مینه او محبت رامنځ ته کوي؛ ځکه یو مسلمان باید بل مسلمان د الله د رضا لپاره خپل ورور وګڼي او څه شی چې د ځان لپاره خوښوي، خپل مسلمان ورور ته یې هم خوښ کړي.

اسلامي ورورګلوي د ټولنې د وګړو ترمنځ د خواخوږۍ احساس پیدا کوي او په غم او ښادۍ کې یې سره شریکوي. زموږ ګران پیغمبر ﷺ فرمایي، مسلمانان د یوه بدن په څیر دي؛ که د بدن یو غړی خوږ شي، نو ټول بدن خوږېږي او رنځېږي.

اسلامي ورورګلوۍ د افغانستان مسلمان ولس د خطر په حالتونو کې د بهرنیو یرغلونو پر وړاندې سره یوموټی کړي، د دغه هېواد ټول وګړي یو د بل ترڅنګ ولاړ او یرغلګر یې له خپل هېواد څخه تېښتې ته اړ ایستلي دي.

اسلامي ورورګلوي د ټولنې د وګړو ترمنځ سوله، پخلاینه، امن او یووالی رامنځ ته کوي. د مسلمانانو تر منځ هر راز دښمني او کرکه ناروا بولي او له منځه یې وړي. د مسلمانانو شعار د سلام خپرونه ده او سلام اچول د سولې او امنیت په معنا ده.

اسلامي ورورګلوي د افغانستان د ملي یووالي او اتحاد پیاوړتیا، درناوي او پرمختګ تر ټولو غوره لامل او بنسټ ګڼل کېږي. هېڅ کوم بل لامل او شعار د عقیدې او اسلامي ورورګلوۍ په څېر نشي کولای د دغه هېواد مسلمان خلک خپل شاوخوا ته راغونډ کړي.






زده کوونکي دې د ځينو نړيوالو هېوادونو او ځواکونو په اړه، چې د نژادي غوره والي پر بنسټ يې نړيوال جنګونه او شخړې پيل کړي او يا يې بې وزلي ملتونه استعمار کړي، تر بحث او څېړنې لاندې ونيسي.




۱. د نړۍ د ملتونو د يووالي تر ټولو غوره لاملونه کوم شيان جوړوي؟
۲. د افغانستان خلک د تاريخ په مختلفو دورو کې کومو ګډو ټکو راټول کړي دي؟
۳. د افغانستان د خلکو د ملي يووالي په لاملونو کې کوم لامل غوره دی؟
٤. اسلامي ورورګلوي څه مفهوم لري او اسلامي ورور ګلوي د افغانستان د خلکو په ملی يووالي کې کوم رول لوبوي؟




زده کوونکي دې د هغې ورورګلوۍ په اړه يو مطلب وليکي چې د اسلام ګران پيغمبرﷺ مدينې منورې ته له هجرت څخه وروسته د مسلمانانو تر منځ عملي کړې وه.





## ملا فیض محمد کاتب هزاره

زموږ ګران هېواد، افغانستان د پوهانو، لیکوالو، ننیګالیو او نومیالیو زانګو ده. د هغوی د نه ستړي کېدونکو هڅو او مبارزو له امله زموږ هېواد اوسني پړاو ته رسېدلی دی. موږ د هغوی یاد تازه ساتو، مېړانې او سربښندنې یې ستایو او پر پل یې پل ږدو.
په دغه لوست کې د نورو لیکوالو، تاریخپوهانو او ملي شخصیتونو په ډله کې ملا فیض محمد کاتب هزاره درپېژنو.

ملا فیض محمد کاتب هزاره د سعید محمد زوی او د غزني ولایت اوسېدونکی و. په ۱۲۸۹ قمري کال کې په غزني کې زېږېدلی او د هېواد د وتلو تاریخپوهانو په ډله کې شمېرل کېږي. پر دې سربېره کاتب د مشروطه غوښتونکو د ډلې غړیتوب درلود او له همدې امله یې یوه موده د شېرپور په زندان کې شپې او ورځې تېرې کړې چې بیا وروسته په اماني پېر کې له زندانه خوشې شو.

ملا فیض محمد کاتب هزاره د هېواد یو روڼ اندی، لیکوال او څېړونکی و. نوموړی یو بدلون غوښتونکی او تاریخپوه و چې د هېواد له نورو روڼ اندو سره یوځای یې د شلمې پېړۍ په پیل کې پر مبارزې لاس پورې کړ. د کاتب یوه مشهوره لیکنه "سراج التواریخ" دی چې په افغانستان کې د نولسمې پېړۍ د تاریخي پېښو په اړه د یوه اخځلیک په توگه ورڅخه کار اخیستل کېدای شي.

## د کاتب لیکنې:

### ۱ - تحفه الحبیب

کاتب یو ښه لیکوال او تاریخپوه و. هغه د امیر عبدالرحمن خان له لوري د افغانستان د تاریخ پر لیکلو گومارل شوی و. کاتب په ۸۸۵ مخونو کې د "تحفه الحبیب" په نامه یو کتاب ولیکه چې د احمدشاه بابا له پېر څخه د امیر عبدالرحمن خان تر پاچهی پورې پېښې یې پکې راټولې کړې دي.

### ۲ - سراج التواریخ

سراج التواریخ د افغانستان د دولتي پېښو لومړنی لیکل شوی کتاب بلل کېږي. داکتاب په پنځو ټوکونو کې لیکل شوی. په لومړي او دویم ټوک کې یې د افغان - انگلیس له دویمې جگړې څخه دمخه پېښې راغلې دي. دریم ټوک، د امیر عبدالرحمن خان د پاچاهی په پېښو پورې اړوند دی. د سراج التواریخ څلورم ټوک، د امیر عبدالرحمن خان د پاچاهی وروستي وختونه، د امیر حبیب الله خان د پاچاهی او پر تخت د امیر امان الله خان تر کېناستو پورې پېښې بیانوي. پنځم ټوک د امان الله خان د لس کلنې واکمنۍ پېښې بیانوي.

### ۳ - فیضی از فیوضات

دا کتاب د افغانستان سیاسي تاریخ دی. د اروا ښاد علامه حبیبي د وینا له مخې په دغه کتاب کې کاتب خپل شخصي معلومات راټول کړي دي.

### ۴ - له هبوط آدم علیه السلام څخه د حضرت عیسی علیه السلام تر بعثت پورې د پخوانیو حاکمانو تاریخ

دا کتاب په ۲۸۹ مخونو کې د وخت د رشدیه ټولگیو لپاره لیکل شوی او د پوهنې وزارت له



خوا چاپ شوی دی.

**۵ - تذکرة الانقلاب**

په دغه کتاب کې يې د اماني دولت د رانسکورېدو په اړه د خپلو سترګو ليدلي حالات د ورځنيو يادداشتونو په ډول ليکلي دي.

فيض محمد کاتب، محمد سرور واصف قندهاری او غلام محمد غبار درې لوی شخصيتونه وو، چې د کندهار، کابل او غزني په ولايتونو کې د نورو لويانو، مشرانو او هېوادپالو په ګډون يې نومونه، کړنې او احساسات د ستاينې او درناوي وړ دي. درې واړه شخصيتونه د افغانستان د مشروطه غوښتنې او خپلواکۍ اخيستنې په غورځنګ کې شامل وو.

د کاتب هزاره او نورو پوهانو او ليکوالو نومونه زموږ د هېواد د تاريخ په پاڼو کې ثبت دي. د هغوی کړنې او مبارزې به د دې هېواد د هر يو وګړي د لارې مشال وي.




زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي. د ملا فيض محمد کاتب پر تأليفاتو او کړنو دې خبرې اترې وکړي او د خپلو استازو له خوا دې نورو زده کوونکو ته بيان کړي.




۱ - ملا فيض محمد کاتب هزاره چېرته او په کوم کال کې زېږېدلی دی؟

۲ - د ملا فيض محمد کاتب ارزښتمن اثر څه نومېږي او ارزښت يې څه شی دی؟

۳ - د ملا فيض محمد د تأليفونو نومونه وليکئ.




زده کوونکي دې د ملا فيض محمد د ژوند په اړه يوه مقاله وليکي او د سراج التواريخ اهميت دې پکې بيان کړي.





## سوله او د هېواد بيا رغونه

زموږ هېوادوالو په تېرو دريو لسيزو کې د بهرنيو يرغلونو، خپلمنځي شخړو او جګړو له امله سخت زيانونه وليدل، ګڼ شمېر ووژل شول، نورو هېوادونو ته په هجرت کولو اړ ايستل شول، ښوونه او روزنه، کرنه، مالداري، وداني، سړکونه او صنعت ټول، نه يوازې له پرمختګ څخه پاتې شول، بلکې له يوه ويجاړوونکي حالت سره مخامخ شول.

اوسمهال زموږ په لومړيتوبونو کې د سولې ټينګښت او د هېواد بيارغاونه تر ټولو مهم کار دی. سوله او د هېواد بيارغاونه څومره ارزښت لري او د دغو دواړو تر منځ څه اړيکه ده؟ راځئ چې په لاندې لوست کې په دې اړه معلومات تر لاسه کړو.

سوله او امنيت د بشري ټولنې تر ټولو مهمه اړتيا ده. په سوله کې د الله تعالی عبادت په ښه توګه تر سره کېږي، ګټور علوم خپرېږي، مسلمانان په ازاده د الله دين ته خلک بللی شي، د خلکو ځانونه او مالونه خوندي وي او د داد په حالت کې د ژوند له ټولو ښېګڼو څخه خوند اخلي.

جګړې او شخړې بدمرغي زېږوي، د خلکو تر منځ بېلتون او کرکه پیدا کوي، هېواد ورانوي، ښوونې او روزنې ته زیان رسوي، ناروغي او لوږه زېږوي او د ژوند په هره برخه کې زیانونه رامنځ ته کوي.
الله تعالی په قرآن کریم کې فرمايي: ﴿وَالصُّلْحُ خَيْرٌ﴾ (النساء: ۱۲۸) او سوله تر ټولو غوره چاره ده.
هو، کله چې په رښتیا د مسلمانانو پر خاورې او ارزښتونو تېری وشي او د هغه د تمبولو لپاره له جګړې پرته بله لاره نه وي، نو داسې جګړه جهاد بلل کېږي او له اسلامي احکامو سره سم يې پر مخ وړل د ثواب لامل ګرځي.
خپلمنځي جګړې او د مسلمانو ورونو وژنه يوه ناروا چاره ده او هرکله چې دا کار تر سره شوی، مسلمانانو پرې پښېمانې ښرګنده کړې او وايي کاش دا کار نه وای تر سره شوی.
د خپلمنځي شخړو د هوارولو لپاره تر ټولو ښه لاره سوله او مرکه ده چې له زیان، زور او زیاتي پرته ستونزه هواروي.
که په هېواد کې سوله او امنیت وي، خلك به علم زده کولو ته په آرامه فضا کې مخه کړي، د هېواد په ودانولو کې به ونډه واخلي، ښوونځي، پوهنتونونه، روغتونونه، ودانۍ، پلونه او سړکونه به جوړ شي، د برېښنا بندونه، د کښت لپاره نهرونه او ویالې به ورغېږي. هېواد به مو په خپلو پښو ودرېږي، د نورو له احتیاج څخه به خلاص شو او د خپل ژوند اړتیاوې به په خپلو متو پوره کړای شو.
لکه څرنګه چې الله تعالی سوله خوښوي، همدا ډول يې د ځمکې ودانول هم له موږ څخه غوښتي او دا خوښوي چې په خپل بنده کې د خپلو نعمتونو نښې ويني، د ځمکې سمسورتیا او د خلکو سوکالي اسلامي پیغام دی. کرکه او فساد د اسلام له نظره ناروا عمل دی، وژل او ویجاړول په قرآن کریم کې د فرمان نه منونکو کار ګڼل شوی دی.
راځئ چې خلك سولې ته راوبولو او په ټشو پلمو د مسلمانانو د وینو له تویولو څخه ډډه وکړو، د جګړو او شخړو پر ځای د هېواد په آبادولو کې زیار وباسو، تر څو د نړۍ په سرلوړو قومونو کې هسکه شمله ژوند وکړو.




زده کوونکي دې د سولې ګټې او د جګړو زیانونه په نوبت سره بیان کړي.






۱ - د سولې ګټې بیان کړئ.

۲ - د خپلمنځي جګړو او شخړو زیانونه ووایاست.

۳ - د سولې په هکله د قرآن کریم هدایت له ژباړې سره ولیکئ.

٤ - د جهاد او خپلمنځې جګړو تر منځ څه توپیر دی؟

٥ - د سولې او بیارغونې تر منځ اړیکه بیان کړئ.

٦ - د هېواد آبادول او د خلکو د ښېرازۍ په اړه د اسلام غوښتنه څه ده؟




هر زده کوونکی دې په خپل کلي او محله کې یو عملي خدمت تر سره کړي او په راتلونکي درس کې دې یې راپور وړاندې کړي. لکه د جومات جارو کول، د کوڅې پاکول، د پلاستیکي کڅوړو او بوتلونو ټولول او داسې نور.





## د هېواد رغاونه د هر افغان ملي او ديني دنده ده

ګران افغانستان د تېرو درېو لسيزو پرله پسې جګړو له امله د پرمختګ او ترقی له کاروان څخه وروسته پاتې دی. ګڼ شمېر ماشومان او لويان د زده کړې له نعمت څخه بې برخې دي. د کورنيو اقتصادي حالت سم نه دی، ناروغي او بې وزلي مو خلک ځوروي. د ناپوهۍ له امله خلک يو تر بله لاس او ګرېوان شوي او مادي او معنوي شتمنيو ته مو د جګړې له امله زيانونه رسېدلي دي.

له دې امله موږ ته ښايي زده کړه وکړو او له هرې لارې چې کولای شو، د خپل هېواد د ودانۍ او بيارغاونې لپاره کار او زيار وکړو چې که خدای ﷻ کول هغه د پرمختګ او کمال لوړو پوړيو ته ورسوو. دغه کار هم يو ديني مسؤوليت دی او هم ملي مکلفيت.

### د پيدايښت يوه موخه د ځمکې ودانول دي

د انسان د پيدايښت يوه موخه د ځمکې آبادي او له هغو نعمتونو څخه ګټه اخيستل دي چې خدای جل جلاله د انسان د ګټې لپاره پيداکړي دي. قرآن کريم په دې اړه فرمايي: ﴿هُوَ أَنشَأَكُم مِّنَ الأَرْضِ وَاسْتَعْمَرَكُمْ فِيهَا﴾ (د هود سورت ۱۵ آيت). ژباړه: [خدای جل جلاله تاسو له دې ځمکې څخه پيدا کړئ او تاسو يې د هغې په ودانولو مکلف کړئ.] ددغه آيت له مخې د ځمکې د آبادي لپاره کار او هلې ځلې د هر مسلمان ديني دنده او مکلفيت دی.

په دې اړه ډېرې اسلامي لارښوونې شته چې پر پلي کولو يې ټولو خلکو ته ګټه رسېږي. لکه، د نيالګيو



کېنول، کرنه، د لارو، جوماتونو، ښوونځیو او مدرسو جوړول، د اوبو د ځاه ګانو او د ویالو او کاریزونو کیندل او نور.

## په نړۍ کې د ودانولو کار جاري صدقه ده

د ځمکې د ودانولو په موخه کار او زیار یو پرله پسې بهیر دی چې د قیامت تر ورځې پورې دوام لري.
رسول اکرم ﷺ په یو حدیث شریف کې فرمایلي دي، چې ژباړه یې داسې ده: که قیامت هم راشي او ستاسو په لاس کې نیالګی وي، باید هغه کینوئ.
د ځمکې د ودانولو لپاره هلې ځلې د نړۍ پر ګټو سربېره د آخرت ګټه هم لري؛ ځکه دغه کار تر ټولو ښه تلپاتې جاري صدقه شمېرل کېږي، چې له پورتني حدیث شریف سره سم یې له مړینې وروسته ورته اجر هم رسېږي. د همدغه شرعي مکلفیت له مخې پخوانیو مسلمانانو په خپل تلپاتې کار او هڅو د سترو بشري تمدنونو په لیکه کې د اسلامي سترو تمدنونو بنسټ کېښود چې له برکته یې ننني پرمختیاوو، بدلونونو او نوښتونو ته د علومو او تکنالوژۍ په بېلابېلو څانګو کې لاره هواره شوې ده.

## د هېواد په جوړولو کې زموږ مسؤولیتونه

موږ افغانان د اسلام د سپېڅلي دین د حکم له مخې باید د خپل ګران هېواد په ودانولو کې په اخلاص سره کوښښ وکړو. د هېواد د ابادۍ لپاره هڅه او کوښښ نه یوازې یو ملي مسؤولیت شمېرل کېږي، بلکې یوه ارزښتمنه اسلامي او دیني دنده هم ده.
باید پام ولرو چې د مسلمانانو عزت او لوړتیا د هغوی په پیاوړتیا او ځواک کې نغښتې ده. د مسلمانانو له ایمان او یووالي وروسته پرمختګ او اقتصادي پیاوړتیا تر ټولو ستر ځواک او پیاوړتیا ده. پیغمبر اکرم ﷺ د خدای جل جلاله په نزد له کمزوري مسلمان څخه قوي مسلمان غوره ګڼلی دی. له دې امله موږ ته لازمه ده چې د خپل ګران هېواد په آبادۍ، پرمختګ او پیاوړتیا کې هلې ځلې وکړو چې زموږ خلک او هېواد د نړۍ د هېوادونو په لیکه کې خپل مناسب ځای پیدا کړي.



## د اسلام له نظره د دنیا او اخرت لپاره کار

د اسلام سترو پوهانو ویلي، د دنیا کارونه داسې سرته ورسوئ چې ګوندې همیشه ژوندي یاست او د اخرت کارونه داسې سرته ورسوئ چې ګوندې سبا ته مرئ. د ځمکې په ابادۍ کې باید کارونه داسې سرته ورسوئ چې

ګوندي تل ژوندی يئ چې وروستی نسلونه ترې ګټه واخلي؛ يعنې د آبادۍ په کارونو کې بايد اوږدمهالې ګټې په پام کې ونيسو.

څنګه چې موږ د پخوانيو نسلونو له کار او زيار څخه ګټه اخلو، بايد د هغوی په پل، پل کېږدو او د هېواد د ابادولو په کار کې خپله دنده سرته ورسوو. دا کار به هم موږ ته ګټه ورسوي او هم به د وروستيو نسلونو د ژوندانه اړتياوې پوره کړو. له مسلمانانو څخه د اسلام غوښتنه د ځمکې ابادول، د ژوندانه د اړتيا وړ وسايلو چمتوکول، د ښه او پاك چاپېريال جوړول او د خدای جل جلاله عبادت دی. دا کارونه په دنيا کې زموږ د سوکالۍ او په آخرت کې د ډېر ثواب سبب کېږي. عبادت په عامه معنا هغه کار او خدمت ته ويل کېږي چې د اسلامي حکم پر بنسټ سرته ورسېږي او موخه يې خلکو ته دګټې رسول وي.




زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د دنيايي ګټو او دويمه ډله دې د آخرت دګټو په هکله خبرې وکړي او د ډلې استازي دې يې نورو ته بيان کړي.




۱. د ﴿هُوَ أَنشَأَكُم مِّنَ الأَرْضِ وَاسْتَعْمَرَكُمْ فِيهَا﴾ آيت مفهوم څه شی دی؟ په لنډ ډول يې توضيح کړئ.
۲. د حديث معنا چې د نيالګيو دکينولو په هکله وه، بيان کړئ.
۳. جاري صدقه څه ته وايي او ولې د ځمکې آبادول جاري صدقه کېږي؟
٤. د دنيا او آخرت لپاره کار بيان کړئ

## د ټولنې د غړو متقابل حقوق او مسؤولیتونه

خدای جل جلاله انسان یو ټولنیز موجود پیداکړی، په ټولنه کې د خپلو اړتیاوو د پوره کولو لپاره یو بل ته اړ دی. هېڅوک خپلې اړتیاوې په یوازې سر نشي پوره کولای. په دې توګه په ټولنه کې د متقابلو حقونو او مسؤولیتونو اړتیا رامنځ ته کېږي. د ټولنې افراد پر یو بل باندې حقوق پیداکوي. دا حقوق باید دواړه لوري ومني. د دغو حقوقو پر وړاندې د هغوی پر غاړه مسؤولیتونه لوېږي چې ښایي په سرته رسولو کې یې بې پروایي ونه کړي. له دې امله انسانان باید له یو بل سره مرسته وکړي. موږ هر یو د خپلې ټولنې غړی یو، ښایي له دې مفاهیمو سره آشنا شو. هغو ته پاملرنه او عملي کول یې د ټولنې د سوکالۍ او نېکمرغۍ لامل کېږي. زموږ نننی لوست د همدې موضوعاتو په اړه دی.

### متقابل حقوق او مسؤولیتونه څه شی دي؟

د متقابلو حقوقو له منلو او سرته رسولو څخه موخه دا ده چې د ټولنې افراد، کوچنیان او لویان، نارینه او ښځې، خپل او پردي، ګاونډي او د یوې سیمې اوسېدونکي ټول یو پر بل حقونه لري، ټول له یو بل څخه هیله لري چې دغه حقونه په سم ډول سرته ورسوي.
له متقابلومسؤولیتونو څخه موخه دا ده چې له پورته یادو شوو افرادو څخه هر یو، یو د بل پر وړاندې ځینې مسؤولیتونه او دندې هم پر غاړه لري چې د هغو حقونو له مخې یې ښایي سرته ورسوي؛



يعنې د هر حق پر وړاندې مسؤوليت او د هر مسؤوليت پر وړاندې حق موجود دی.

### د متقابلو حقونو او مسؤوليتونو عملي کول د ټولنې د نېکمرغۍ او ژغورنې لامل کېږي

په يوه ټولنه کې سالم او نېکمرغه ژوند هغه وخت رامنځ ته کېدای شي چې افراد يې خپل حقوق او مسؤوليتونه وپېژني او د خپلو حقوقو په ترلاسه کولو او د خپلو مسؤوليتونو په سرته رسولو کې کوښښ وکړي.

پيغمبر اکرم ﷺ په يوه حديث کې ټولنه د يوې بېړۍ له سپرليو سره پرتله کړې، فرمايلي يې دي، که چېرې د يوې بېړۍ يو شمېر سپرلي د بېړۍ په سوري کولو لاس پورې کړي او نوره سپرلۍ يې يوازې ننداره وکړي، څه ورته ونه وايي او مخه يې ونه نيسي، ورو ورو به اوبه بېړۍ ته ننوزي، بېړۍ به ډوبه او ټولې سپرلۍ به ووژل شي، خو که چېرې د مسؤوليت احساس وکړي او د هغوی لاس ونيسي، ټول به وژغول شي او بېړۍ به روغه منزل ته ورسېږي .

### د ميندو، پلرونو او اولادونو متقابل حقوق او مسؤوليتونه

د هغو کسانو په ليکه کې چې متقابل حقوق او مسؤوليتونه لري، ميندې او پلرونه دي. هغه حقوق چې اولاد يې پر مور او پلار لري، ښايي ميندې او پلرونه يې تر خپلې وسې پورې په سرته رسولو کې ناغېړي ونه کړي. لومړی ښايي د هغوی په ښوونه او روزنه، روغتيا، جامو، خوړو او د نورو لومړنيو اړتياوو په پوره کولو کې هاند او هڅه وکړي، له مورنۍ او پلرنۍ مينې او زړه سوي بې برخې نشي. والدين هم پر خپلو اولادونو حقونه لري، چې په سرته رسولو کې يې ښايي خپل مسؤوليت سرته ورسوي. د بېلګې په توګه، موږ بايد تل د هغوی درناوی وکړو، نصحيتونو، لارښوونو او مشورو ته يې غوږ کېږدو، د ضعف او کمزورۍ پر مهال يې مرستې ته ودانګو او د خير دعا ورته وکړو.

### د ښوونکو او زده کوونکو متقابل حقوق او مسؤوليتونه

له مور او پلار وروسته ښوونکي او زده کوونکي د يو بل پر وړاندې متقابل حقوق او مسؤوليتونه لري. پر ښوونکو د زده کوونکو حق دادی چې د زده کوونکو په سمه زده کړه او روزنه کې له هېڅ راز هلو ځلو مخ وانهړوي، له اخلاصه ډکې لارښوونې وکړي او خپله پوهه او تجربې ورسره شريکې کړي. پر زده کوونکو د ښوونکو حقوق دادي چې تل يې درناوی وکړي، لارښوونو او نصيحتونو ته يې په مينه غوږ کېږدي، په ورځني لوست کې زيار وکاږي او کورنۍ دندې سمې سرته ورسوي.



### د ټولګیوالو متقابل حقوق او مسؤولیتونه

ټولګیوال هم یو د بل پر وړاندې متقابل حقوق او مسؤولیتونه لري. هغوی ښايي له یو بل سره مینه، ملګرتوب او صمیمیت ولري، یو له بل سره په کارونو، په تېره بیا په زده کړو کې مرسته وکړي، د یو بل درناوی وکړي او د رسول اکرم ﷺ له وینا سره سم، هغه څه چې د ځان لپاره خوښوي د نورو لپاره یې هم خوښ کړي.

### د ګاونډیو متقابل حقوق او مسؤولیتونه

د ګاونډیانو تر منځ هم همدارنګه متقابل حقوق او مسؤولیتونه شته. موږ باید د یو بل حقوق او مسؤولیتونه، چې له متقابل درناوی او زیان نه رسولو څخه عبارت دی، په اخلاص سره رعایت کړو. پیغمبر اکرم ﷺ فرمایلي دي، هغه څوک، چې ګاونډی یې له زیان څخه په امن کې نه وي، بشپړ مؤمن نه دی.

### زموږ او هېواد تر منځ متقابل حقوق او مسؤولتونه

په همدې ډول موږ د خپل هېواد، افغانستان پر وړاندې حقوق او مسؤولیتونه لرو؛ ځکه په دغه خاوره کې مو خاپوړې کړي، د هغه له اوبو، هوا او خوړو څخه مو د بدن هډوکي، غوښه او وینه جوړه شوې ده. له دې امله د خپل هېواد پر وړاندې مسؤولیتونه لرو چې ښايي په سرته رسولو کې یې ناغېړي ونه کړو. مینه ورسره ولرو او ارزښتونو ته یې رښتینې واوسو، قوانین یې ومنو، په ښېرازۍ او پرمختګ کې یې هلې ځلې وکړو، د پردیو له ناپاکو منګولو څخه یې وژغورو. په سر او مال یې دفاع ته چمتو واوسو. دا کار له هېواد سره د مینې او مېړنتوب نښه ده. ژوندي، آزاد او پتمن هغه ملتونه دي چې خپل متقابل حقوق او مسوولیتونه درک کړي او د خپل هېواد د سرلوړۍ لپاره تل نه ستړي کېدونکي هڅې او هلې ځلې وکړي.




زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. یوه ډله دې د پلار، مور او اولادونو د متقابلو حقوقو او مسؤولیتونو او بله ډله دې د ښوونکو او زده کوونکو د متقابلو حقوقو په باره کې خبرې اترې وکړي او پایله دې د خپل استازي په واسطه ټولګي ته وړاندې کړي.






۱. په ټولنو کې د افرادو د متقابلو حقوقو مقصد څه شی دی؟
۲. په يوه ټولنه کې متقابل مسؤوليتونه څه معنا لري؟
۳. پيغمبر اکرم ﷺ انساني ټولنه له يوې بېړۍ سره پرتله کړې ده، په دې اړه خبرې وکړئ.
٤. د اولادونو، پلرونو او ميندو تر منځ متقابل حقوق او مسؤوليتونه بيان کړئ.
٥. د زده کوونکو او ښوونکو تر منځ متقابل حقوق او مسؤوليتونه بيان کړئ.
٦. د ګاونډيانو تر منځ متقابل حقوق او مسؤوليتونه بيان کړئ.
۷. هغه مسؤوليتونه چې موږ يې د هېواد په وړاندې لرو، څرګند کړئ.




د رسول اکرم ﷺ له حديث څخه په استفادې چې ټولنه يې د بېړۍ له سپرليو سره پرتله کړې، لس کرښې مقاله وليکئ.






## خپلواکي او آزادي

د خپلواکۍ سیاسي معنا داده چې یو هېواد د خپلو قوانینو په جوړولو، پلي کولو او په اقتصادي، ټولنیزو او سیاسي فعالیتونو کې بشپړ واک ولري. د آزادۍ سیاسي معناداده چې یو هېواد د نورو له فشار او لاسوهنې پرته د ټاکنو او پرېکړو حق ولري. په دغه لوست کې له برتانیې څخه د هېواد د خپلواکۍ د ترلاسه کولو په اړه لنډ معلومات ترلاسه کوئ.

### له انګریزانو څخه د هېواد د خپلواکۍ ترلاسه کول

د افغانستان باتورو خلکو د هېوادپالنې د احساس له مخې په ۱۹۱۹ م ۱۲۹۸ لمریز کال کې د اعلیحضرت امیر امان الله خان په مشرۍ د افغان ولس په بشپړ یووالي د برغلګرو پر وړاندې جهاد پیل کړ. د هېواد په ګوټ ګوټ کې یې د تکبیر نارې پورته کړې او پر ښکیلاکګرو یې ورودانګل، لیکې یې ورماتې کړې او په پایله کې یې دې ته اړ ایستل چې زموږ د هېواد خپلواکي په رسمیت وپېژني. د ډېرو ځاني او مالي زیانونو په زغملو یې زموږ خپلواکي پر غلیم په رسمیت وپېژنده او موږ ته یې د یو سپېڅلي میراث په توګه راپرېښوده.

## د خپلواکۍ له ترلاسه کولو څخه وروسته د هېواد پرمختګ

افغانستان د خپلواکۍ له ترلاسه کولو وورووسته نوي ګامونه پورته کړل، د هېواد په سیاسي، اقتصادي او فرهنګي برخو کې د پام وړ بدلونونه رامنځ ته شول، د پوهنې په برخه کې دولت د نړۍ له علمي او فرهنګي مرکزونو سره خپله اړیکه ټینګه کړه، سربېره پر دې یې په هېواد کې سلګونه ښوونځي، لیسې، د ښوونکو روزنې مرکزونه (دارالمعلمینونه) او مسلکي ښوونځي پرانیستل.

د هېواد د ژونالیزم د پلار، محمود طرزي په هڅه او هاند سره په هېواد کې د خپرونو لاره هواره شوه. له مطبوعاتو څخه پخواني محدودیتونه لرې شول، د دولتي او شخصي جریدو او مجلو ترڅنګ د رادیو یوې وړې دستګاه هم په هېواد کې په خپرونو پیل وکړ.

## زموږ اوسنۍ دندې او مسؤولیتونه

زموږ ګران هېواد افغانستان د وخت په تېرېدو سره ډېرې لوړې ژورې لیدلې دي. اوسمهال چې زموږ ګران هېواد له جګړې او ورانۍ څخه د روغې جوړې، سولې، ملي یووالي او بیارغاونې لورې ته روان دی، خپلو هیلو ته د رسېدو او د هېواد د ستونزو د هوارولو لپاره تر ټولو ارزښتناک لوست د هېواد د ټولو خوځاکونو یووالي او د سیاسي، اقتصادي، فرهنګي او ټولنیزو نظامونو همغږي ده. موږ باید ټول په یوه لیکه کې ودرېږو او د هېواد د ودانۍ، سمسورتیا، دایمي سولې د ټینګښت او د بهرنیو لاسوهنو د بندولو او د تېریو او دسیسو د شنډولو لپاره هڅه او هاند وکړو.




زده کوونکي دې په څو ډلو ووېشل شي، هره ډله دې د لاندنیو مطالبو په هکله له یو بل سره خبرې وکړي او د خبرو پایلې دې د هرې ډلې استازی نورو ته بیان کړي.

- خپلواکي څه ته وایي؟
- آزادي څه معنا لري؟




۱. افغانستان کله او د چا په وخت کې خپلواکي ترلاسه کړه؟ په لنډه توګه یې بیان کړئ.

۲. له خپلواکۍ وروسته زموږ په هېواد کې څه بدلونونه رامنځ ته شول؟ په لنډه توګه یې بیان کړئ.




د (خپلواکۍ او ازادۍ) تر سرلیک لاندې یوه مقاله ولیکۍ چې له پنځو کرښو لږه نه وي.















## افغانستان د علم او تمدن زانگو

زموږ د گران هېواد، افغانستان د لرغوني تمدن په اړه څه پوهېږئ؟ آیا د هغو نامتو پوهانو او علماوو له نومونو سره آشنا یئ چې په دې خاوره کې پیدا شوي او روزل شوي او د بشریت لپاره یې ارزښتناک خدمتونه تر سره کړي دي؟ څنگه کولای شو د گران هېواد تېر شوی علمي او فرهنگي برم بیا را ژوندی کړو؟ په دغه لوست کې به د پورته پوښتنو ځوابونه ولولو.

زموږ گران هېواد د نومیالیو ملي مشرانو او پوهانو د زوکړې ځای دی چې د علم په بېلابېلو څانگو کې یې د بشریت د پرمختیا لپاره لوی خدمتونه ترسره کړي دي. امام محمد غزالي، امام فخرالدین رازي، ابوریحان البیروني، ابن سینا بلخي، ابو نصر فارابي، مولانا جلال الدین بلخي، خواجه عبدالله انصاري، عبدالحی گردیزي، سید جمال الدین افغاني، پیر روښان، خوشحال ختک، میا فقیرالله جلال آبادي، عبدالرحمان بابا او په لسگونو نور پوهان داسې شخصیتونه دي چې ځلېدونکي علمي کارونه یې د بشریت په تاریخ کې ثبت شوي دي. نوموړو پوهانو او لیکوالو هر یو په علمي ډگرونو کې غوره برياوې تر لاسه کړې او د پوهې او بشریت په پرمختگ او بډاینې کې یې رول لوبولی دی.

له شک پرته د نومیالیو پوهانو موجودیت او د هغوی ارزښتمن علمي آثار، که له یوې خوا د هغوی

د پرله پسي او نه ستړي کېدونکو هلو ځلو پایله ده، له بلې خوا هغه مهال د علمي چاپېریال او د څېړنیزو مرکزونو شتون نښيي؛ ځکه په کومه ټولنه کې چې علم او ادب ارزښت لري او وګړي یې له علم او پوهې سره مینه لري، مشران یې علم پالونکي خلك وي، هلته علم پرمختګ کوي او ولسونه مخ پر وړاندې ځي.

تاریخي ښارونه لکه بلخ، هرات، غزنی، نیشاپور، سمرقند، بخارا، مرو، بست او داسې نور هر یو د نړۍ لوی علمي او مدني مرکزونه ګڼل کېدل او د علم او پوهې طالبان له لرې ځایونو څخه د علم د حاصلولو لپاره هلته ورتلل.

ویلای شو چې زموږ ګران هېواد د علم او تمدن زانګو ده او دا ایجابوي چې د افغانستان زامن د خپلې خاورې علمي تاریخ او مدنیت هېر نه کړي او د خپلو نیکونو په څېر د علم او پوهې د لاسته راوړلو لپاره د همت ملا وتړي، څو زموږ ملت یو ځل بیا پخوانی لوړ علمي مقام ترلاسه کړي.

د هېواد هر اړخیز پرمختګ یوازې د علم او پوهې له لارې تر سره کېدای شي. له دې امله باید ټول د خپل ګران هېواد د معنوي او مادي پرمختګ او سوکالۍ په لاره کې خپلې هلې ځلې وکاروي.




زده کوونکي دې د افغانستان د لرغوني علم او تمدن په هکله خبرې اترې وکړي.




د ګران هېواد له نومیالیو او مخورو علماوو څخه د ځینو کسانو نومونه واخلئ.

د هېواد د ځینو ښارونو نومونه واخلئ چې د علم او پوهې لرغوني مرکزونه ګڼل کېږي.

ولې پخوا خلك د علم او پوهې د زده کولو لپاره زموږ هېواد ته راتلل؟